| | | |
|---|---|---|
| دَسنت پہ وسیلے | دَ پیرانو پہ ابرو | دَ نیکانو پہ ابرو |
| پہ آبرو دکار دوستانو | پاکیزہ پرہیزگارانو | نیشتہ حول او نہ قوت |
| پہ عصیان او پہ طاعت | بے لتا خپلہ خاوندہ | کبریا خپلہ خاوندا |
| بے لتا خپلہ مو لا | کبریا خپلہ مولا | لاالٰہ الا انت |
| لا پناہ الا انت | لا مسجود الا انت | لا موجود الا انت |

لا معبود اِلاَّ انت لا مقصودَ اِلاَّ انت

سبحان ربک رب العزۃ عما یصفون وسلام علی المرسلین والحمد للہ رب العلمین

بسم اللہ الرحمن الرحیم

اللّٰھم ربنا الکریم العظیم الرءوف الرحیم لک الحمد والشکر والجلال والجمال فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک کما انت اھلہ وتحب وترضی وکذالک الصلاۃ والسلام والتحیۃ علیٰ خیر خلق اللہ ونور عرش اللہ وعروس مملکۃ اللہ تعالیٰ وعلیٰ آلہ واصحابہ اجمعین اسئلک ان تعطینا کمال محبۃ خلوص ذاتک وکمال شوق سرنا الیٰ لقائک دائماً ابداً لا منقطعاً وھب لنا حکماً والحقنا بالصالحین سبحان ربک رب العزۃ عما یصفون وسلام علی المرسلین ۰ والحمد للہ رب العلمین ۰

بسم اللہ الرحمن الرحیم

مونږ راجدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو
تا لا والا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو

زړونہ زخمی زخمی زولن پرھر پرھر شو
ستا دَحرم نہ چہ جوندی پہ خپلو خپو باھر شو
پہ واویلا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو



مونږ راجدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو

عجب حیران یو چہ پہ ویښہ کہ پہ خوب وو وصال
محبوبہ ستا دَپاک حضور پہ کوم حساب وو وصال
کمہ پہ سودا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو
مونږ راجدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو

مالہ وصالہ اول غم دَھجران وو جوړ لے
دزړہ پہ ستر کوم اول دغہ غم وولید لے
پہ اور جلیا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو
مونږ راجدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو

دا بہ څہ جوندوی تہ اورے اوزہ دلے محبوبہ
بیا چہ در زی دَعاشقانو قافلے محبوبہ
کہ پاتے بیا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو
مونږ راجدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو

ستا دَحرم نہ ھزاران فردوسہ زار کړم واللہ
دا مو ایمان دا عقیدہ دغہ اقرار کړم واللہ
سر پہ غوغا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو
مونږ راجدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو

ستا دَحرم مبارک شکلے دورہ م ډیر یادیگی
اندرون زړہ م پہ انگار ستا دھجران سوزیگی
جدا لہ تا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو
مونږ راجدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جړلو

صلاۃ سلام دِ وی پتا محبوبہ ھرځائے چہ یو
دَرب دَ لوئے علم پہ شما رمطلوبہ ھرځائے چہ یو
لاس پہ دُعا شو پہ ھزار حسرت ارمان جہ لو
مونږ راجُدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جہ لو

دَ محمدؐ امینؐ محبوبہ محمدؐ عربی
اشرف الانبیاء مطلوبہ محمدؐ عربی
نثار پتا شو پہ ھزار حسرت ارمان جہ لو
مونږ ترا جُدا شو پہ ھزار حسرت ارمان جہ لو

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

اللّٰھم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکر وجمیع صفاتک و اسمائک الحسنیٰ فی کل لمحۃٍ ولحظۃٍ وطرفۃٍ و نفس عدد علمک و زنۃ کبریائک من الْسِنۃ ولطائف جمیع ذراۃ الکائنات کما انت اھلہ وتحب و ترضیٰ وکذالک الصلاۃ والسلامُ والتحیۃ علیٰ اشرف واکرم وافضل الانبیاء والمرسلین وعلیٰ الہٖ واصحابہٖ اجمعین وکذالک انا للہ وانا الیہ راجعون اللّٰھم اجرنی فی مصیبتی واخلفلی خیرًا منھا اللّٰھم عندک احتسب مصیبتی فاجرنی فیھا وابدلنی خیرًا منھا اللّٰھم انی اعوذبک من الفتن ما ظھر منھا وما بطن ولاحول ولا قوۃ الا باللہ ؁ سبحان ربک رب العزۃ عما یصفون ۝ وسلام علی المرسلین ۝ والحمد للہ رب العٰلمین ۝

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

ھزار ځل دا جھان کہ وران شی پہ فرقت دَ محمدؐ
ادا بہ حق نہ شی ھرګز دَ مُصیبت دَ محمدؐ



ارض وسما عرش و کرسی کہ شی ذرے ذرے ځل
دی دیر لائق چہ لہ دُنیا او شوی حلت دَ محمدؐ
څلور یاران پہلوانان پہ وینو سرو کوی ګریان
عظیم الشان ھجران لری څومرہ قوت دَ محمدؐ

دَ اھلِ بیتو دَ ماتم ویلے حال نہ شم قسم
زړونہ خوږ شو قلم قلم پہ دے ھجرت دَ محمدؐ
شو پہ اصحابو جوړ محشر پہ لوئے ماتم دَ پاک سرور
پہ غم کے شو زړونہ پرھر ھزار کرت دَ محمدؐ

کون و مکان بہ لړزیدو عرش عظیم راغورزیدو
پہ ملکوت کښے غُکیدو دَ غم نوبت دَ محمدؐ
پہ داسے لوئے غم با اثر چہ دَچا زړہ نہ شی پرھر
افسوس پہ داسے ناخبر نادان اُمت دَ محمدؐ

اِنَّا لِلّٰہِ وَاِنَّا اِلَیْہِ رَاجِعُوْنَ دِ وی
درب دعلم پہ مقدار پہ ھر ساعت دَ محمدؐ
دَ محمدؐ امین ناتوان نصیب کړے خدایہ خیر ایمان
سرہ دَ ھریو مسلمان پہ شرافت دَ محمدؐ

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

سبحانک اللّٰھم وبحمدک وشکرک اشھد ان لا الٰہ الا انت استغفرک واتوب الیک توبۃ عبدٍ ظالمٍ لا یملک لنفسہ ضرًا ولا نفعًا ولا موتًا وحیوٰۃً ولا نشورًا فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک کما انت اھلہ وتحب وترضیٰ وکذالک الصلاۃ والسلامُ علیٰ سیدنا وکریمنا

ومولانا وحبیبنا وشفیعنا محمدٍ ؐ واٰلہٖ وعترتہٖ بعد کل معلومٍ لک
اسئلک رضائک ولقائک لا الٰہ الا انت سبحانک انی کنت من الظٰلمین۔

بسم اللّٰہ الرحمٰن الرحیم

مخ د والضحیٰ یادیګی ستا ټلے په قران ئے
په ډیر لوئے دربار د پاک رب خوږه ډیر حد ګران ئے
اشرف المرسلین ته ئے سرور بهترین ته ئے
د خوبانو په محفل کښے دلبر نازنین ته ئے
د واړه کونه در لوئے کرم ته محبوب د پاک سبحان ئے
صد هزار هزار فردوس په هر خم کښے د زلفانو
ته لرے قسم په پاک رب په مذهب د عاشقانو
دومره ډیر ښکلے محبوب ئے دومره ډیر ښکلے جانان ئے
ستا د مخ په تجلو شوه د عدم تیاره روښانه
د رخسار انوار دِ پوره ته عرش نه زی تر لامکانه
زار لستا د واړه جهانه دلبر هسے عالیشان ئے
ستا له هجره پناه غواړم په جمال ستا د رخسار
د زړګی په وینو جاړم د مولا په لوئے دربار
بل مراد مقصود م نشته بس هم ته ځما ارمان ئے
که ذرے د کائنات م رب روح نه کړی قسم دے
ستا په دربه ئے لوګے کړم شوق م دا په زړه ډیر دے
بس هم د غه م ایمان دے واللّٰه خوخ م هسے شان ئے
که هزار سمندرونه م د اوښو شی روان



واللّٰه حق به ادا نه شی ستا د لوئے غم د هجران
دلبر هسے عالیجاه ئے دلبر هسے عالیشان ئے
خوار فقیر محمد امین ازلی پتامین دے
کل مراد مقصود ئے ته ئے زړه ئے تا پسے غمجن دے
واللّٰه بس ته ئے درمان ئے واللّٰه بس ته ئے درمان ئے

بسم اللّٰہ الرحمٰن الرحیم

اللّٰھم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکر وجمیع صفاتک واسمائک الحسنیٰ فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک من الدنیٰ ولطائف ذرات الکائنات الکبریائیۃ وکذالک الصلاۃ والسلام علی افضل واکرم انبیائک محمدٍ ؐ واٰلہٖ واصحابہٖ اجمعین۔ اسئلک ان تجمع بینی وبین حبیبک علیہ افضل الصلاۃ والسلام کما جمعت بین الروح والنفس ظاھرًا وباطنًا یقظۃً ومنامًا واجعلہ یارب روحًا لذاتی من جمیع الوجود مع جمیع المؤمنین والمؤمنات فی الدنیا قبل الاٰخرۃ لا الٰہ الا انت سبحانک انی کنت من الظٰلمین۔

بسم اللّٰہ الرحمٰن الرحیم

ستا وصال م بس په دواړو کونو کښے مراد دے
بے لستا جوندون م د جړا او د فریاد دے
بے لستا جوندون به څه کړم یا نبی خیر البشر
حال د ځنکدن م دے په بوند مړ و نه یم بتر
ډیر په ما اٰله لاسه د بیلتون ظالم بیداد دے
ستا د عاشقئے په دولت رب چه سرفراز کړمه

زړه ځله فخرونه پر محمود او په ایاز کړمه
ستا په عشق کښې له ازل نه ما ته چه ارشاد دے
صد هزار فردوس په هر خم کښې د زلفانو ستا
ما منلی دی په پاک مذهب د عاشقانو ستا
په زبان او په جنان په دوام ستا یاد دے
که د کائنات ذرے جمله ځما روحونه شی
ستا په درد هر ساعت لوګے او هم ګرد نه شی
بس په دے مقصود مراد مطلب زړګے بنا دے
لویه مولا ستا په درپناه له هجره غواړمه
ستا په لوئے دربار کښې دزړګی په وینو جاړمه
ما بے وس مظلوم د پاره دا ظالم صیاد دے
ستا له هجره کور د زړګی شو سکاره ځما
ستا په دیر روښانه مخ رب لړے کړه تیاره ځما
جمله عالم ستا د مخ له نوره زرنده باد دے
داد محمد امین ویل د عاشقئے په سوز
پټ درون د زړه په خون جړل د عاشقئے په سوز
دا بنکلے تعلیم ئے له کامل مرشد استاد دے

بسم الله الرحمن الرحیم

اللهم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکر والجلال والجمال ذاتک واسما
الحسنیٰ وجمیع صفاتک فی کل لمحة ولحظة وطرفة ونفس عدد
علمک وزنة کبریائک من السنة ولطائف جمیع ذراة الکائنات کما



انت اهله وتحب وترضیٰ وکذالک الصلاة والسلام علیٰ سید الانبیاء
والمرسلین محمد واله واصحابه اجمعین اسئلک ان تصنع بنا ما انت
اهله وتحب وترضیٰ سبحان ربک رب العزة عما یصفون وسلام علی المرسلین
والحمد لله رب العٰلمین بسم الله الرحمن الرحیم

ته هم هغه ئے چه ته ئے اے رحیم کریم جواده
دا خوار هغه دے چه دے دے ور معلوس د پلار شاده
د کرم دریاب دِ لوئے دے د بلا غبګه پرم بیا ده
ستا پر لوئے در لوئے خاوند د خجل عاصی غیبا ده
یو ځل نده بیاده بیاده اَن تر اَبَدُ الاَ باده
ستا د علم په مقدار تل اے په حق رب العباده
اوس لا دا کومه بلا ده اوس لا دا کومه بلا ده
د عالم عیب او شرمونه او جمله قحمه نا خاده
بس یوازے د دے خوار کس شکسته بنده ربستیاده
رسوائی د کوزو ستر ګو ئے خکته تلے تر ثری ده
دا جمله نشیب فراز ستا د حُسن تماشا ده
جمله ته ئے بل څوک نشته دیره حقه دا ویناده
بس مراد مطلب مقصود کل ستا رضا ده ستا رضا ده
تا چه چاله جام ور کړے د هغو دغه غوغا ده
ستا د حُسن په بازار ګرمه شوے دا سوداه
نور چه ته خوره بنه بوئے حواله جمله بتا ده
په ویلو نه بوهیګم آئینه مِ ناصفا ده

ته په کړو دومره قادر ئې | چه پرے علم خاصه ستا ده
په محبوبِ پاک دِ درودوی | تاله جملګی ثنا ده
ستا دَعِلم په مقدار تل | مکوره دا دُعا ده
ستا دَ علم په مقدار تل | هغه شان چه خوښه ستا ده
له ازله خپله ربه | اَنْ تر ابدُ الآباد ده
محمد امین کوزکوری | ستا رضائے مدعا ده

بسم اللہ الرحمن الرحیم

اللّٰهم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکرو اسمائک الحسنیٰ وجمیع صفاتک فی کل لمحةٍ ونَفَسٍ عدد علمک وزنة کبریائک کما انت اهلهٗ وتحب وترضیٰ، وکذالک الصلاة والسلام والتحیة علیٰ حبیبک المصطفیٰ اشرف الانبیاء والمرسلین وعلیٰ اٰله واصحابه اجمعین

## دیره خپله او دیره لویه خاونده

جمله موجود عالَم چه هم ستا په علم کښې دے او دبل چا په علم کښې نشته. نو که دغه جمله ذرے کړے. نو تا خوئے شمیر دغسے معلوم دے. لکه ته چه واحد لا شریک او لایق د کل حمد وثنا ئے. او دین دِحق دے. او بیا دَهرے یوے ذرے په ګیډه کښې په پوره شمیر د دغه کل ذرو= مکمل موجودونه دَدے موجُود په شان په هرنسبت پیدا کړے. نو انک علیٰ ذالک تدیرهٗ انما امرهٗ اذا اراد شیئًا ان یقول له کن فیکون ٥ وما ذالک علی الله بعزیزه

نو دا په جوف دَهرے ذرے کښې متعدد موجودونه په پوره شمیر دکل ذرو دکل موجود دا دویم موجود به شی. بیا دریم داسے لوئے



موجود پیدا کړے چه دا جمله دویم موجود لوئے والی دَهغه په مثل دَیوے ذرے وی= بیا دا دریم موجود کل ذرے کړے. او په جوف دهرے ذرے کښې دَ دریم موجود دَکل ذرو په کل تعداد متعدد موجودونه پیدا کړے چه څلورم موجود په هرنسبت په انداز دَدریم موجود وی. نو دا به څلورم موجود شی. بیا پنځم داسے لوئے عظیم الشان موجود پیدا کړے چه کل څلورم موجود لوئے والی دَ هغه ته په مثل دَیوے ذرے دَدے عالم وی= بیا پنځم کل موجود ذرے کړے. او په پوره شمیر دکل ذرو په ګیډه دَهرے ذرے کښې مکمل موجودونه په پوره انداز دَهرنسبت دَپنځم موجود پیدا کړے. نو دا به شپږم موجود شی- وما ذالک علی الله بعزیزه بیا اووم داسے عظیم الشان موجود پیدا کړے چه جمله شپږم موجود ورته په مثل دَیو ذرے ددے عالم وی. نو

دیر خپله او دیر لویه خاوندا بیا په دے شان او طرز د تخلیق دَعالمونه تر قیام قیامت روزانه هزار هزار اربونه او هزار هزار کربونه کرت دا شان کبریائی او قدرت ستا پوره کیږی= شهد الله انه لا اله هو والملئکة واولوا العلم قائمًا بالقسط، لا اله الا هو العزیز الحکیم ٥ وانا اشهد بما شهد الله تعالیٰ واستودع الله هذه الشهادة الیٰ یوم القیامة:

نو بیا دغه جمله موجودونو دَپاره چه تر قیامته ئے عُروج او تخلیق اوشی. چه کوم میدان دَحساب دَقیامت پیدا کړے په مناسب ددوئ. نو دغه دِ ستا په هدایت او احسان مستی په **هنګامهٔ کبریائی** وی. لاحول ولاقوة الا بالله العلی العظیم فتبارک الله

احسن الخالقین ۰ سبحان ربک رب العزۃ عما یصفون ۰ و سلام علے
المرسلین ۰ والحمد للہ رب العلمین ۰
بیا دیرہ خپلہ او دیرہ لویہ خاوندا که دَجملہ درو دَکل
کائنات په پورہ کل شمار یوہ ذرہ دکل کائنات تقسیم کړے
بیا هغه تقسیم شوے هر هر جزدَ هغے ذرے په پورہ شمار دکل اجزاوو
ما قبل تقسیمه وے. هم د غسے هر کرت تقسیم شوے جز په کل تعداد
ما قبل دَ اجزاؤ تقسیمیگی. او دغه شان کبریائی او باریک بینی یا لطیف
یا قدیر هزار هزار اربونه او هزار کړ بونه روزانه تر قیامة قسمت کوے
فتبارک اللہ احسن الخالقین ط
نو دغه اخیر تقسیم کیدل تر ورزے دَ قیامت دا به
اخیر جُز د تقسیم وی. لاحول ولا قوۃ الا باللہ العلی العظیم اللھم
صل وسلم وبارک علی سیدنا وکریمنا محمدؐ واٰلہ واصحابہ اجمعین ۰
فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک کما انت اھلہ وتحب
وترضیٰ یا ذا الجلال والاکرام ویا ذا الجود والانعام سبحان ربک رب العزۃ
عما یصفون ۰ وسلام علے المرسلین ۰ والحمد للہ رب العلمین ۰

بسم اللہ الرحمن الرحیم

قدرت نه دِ قربان شم دَ قدرت خاوند بهتره
هر کار کښے دَ قدرت ستا عجز نشته دے له وه
په هره یو ذره کښے به هزار هزار محشره
بر پا هره لمحه به نیم غمزه کړے خپل دلبره
کثرت یا نسے تا دره قل هو اللہ احده



پورہ به دا تخلیق کړے بے نیاز مولا صمده
چه کل مناسبات له ازل نه تر ابده
کم نه وی له خپل شانه دَیوه ویخته لسره
توانا خبیر بصیر لطیف قادر قیوم حکیمه
په هر څه په قدرت او په حکمت باندِ علیمه
ذره وی په انداز ئے اخر جز له تقسیمه
محشر تر شهره هنګامه کبریائی برتره
دَدے جمله عالم کل تمنا هزار هزار ارځل
دَدے جمله عالم جمله ویا هزار هزار ځل
ددے جمله عالم جمله ثنا هزار هزار ځل
لمحه لمحه کښے نه ده ستاله شانه برابره
دکل عالم په توان که جملګی عُمر کویا یم
ستا یو صفت به او نه ستایم هسے دیر ادنی یم
ته هغه ئے چه ته ئے ستا ثنا تا لره وایم
سبحانک اللھم ذا الجلاله توانګره
دَعلم په مقدار دِ په دربار کښے سپیلنے شم
په توان احسان ستا هسے ستا به مینه مرئے شم
چه دا مذکور جمله عالم جمله نعمت لوګے کړم
د علم په مقدار ستا هر نفس خاوند اکبره
تر یو لمحه رضا او لقا ستا خاوند قدیما
تر یو لمحه رضا او لقا ستا خاوند عظیما

تر یو لمحے رضا او لقا ستا محبوب کریمہ
دا عرض رم دے لہ صدق ولہ ایمان او لہ باوره

دَ علم په مقدار ستا ستا په درکړمه درخُغتنه
د علم په مقدار ستا په توفیق ستا خپل سختنه

دَ علم په مقدار ستا په توفیق ستا ذا المننه
وی تل هره لمحه کښے کُل د عادِ مکوره

پاک رب العٰلمین بناونده حقے ستا وعدے دی
ارحم الراحمین خاونده حقے ستا وعدے دی

مجیب السائلین خاونده حقے ستا وعدے دی
لرم یوے گواهی له خپل قرانه معتبره

اللهؒ په لوئے عظمت او لیاقت دخپل جلال
اللهؒ په لوئے عزت او شرافت دَخپل وصال

عاجز محمد امین په ابروئی دَخپل جمال
سره دَکل اسلام کړے په امان له کل ضرره

سبحان ربک رب العزة عما یصفونo وسلامٌ علی المرسلینo والحمد لله رب العٰلمینo

بسم الله الرحمٰن الرحیم

اللّٰهم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکر فی کل لمحةٍ ونفَسٍ عددَ وزنة وشرافة کبریائک کما انت اهلهٗ وتحب وترضیٰ وکذالک الصلٰوة والسّلام علیٰ سیدنا وکریمنا وحبیبنا محمدؐ واٰله واصحابه اجمعینo اسئلک ان تعطینا کمال محبة خلوص ذاتک وکمال شوق سرنا الیٰ لقائک دائما ابدًا لا منقطعًا لآ اله الا انت سبحانک انی کنت من الظّٰلمینo یا ذا الجلال والاکرامo



بسم الله الرحمٰن الرحیمؒ

قران به غواړی چه لری هرڅوک ایمان په قران
اللهؒ نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

چه دَ قران قانون دَچا خوخ په وطن کښے نهُ وی
ایمان به چرے ددغے نادان په تن کښے نه وی

قران به غواړی چه هرڅوک وی مسلمان په قران
اللهؒ نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

اللهؒ تیاره دَضلالت او جهالت لرے کړے
دَ کل جهان نه له هرقسمه شرارت لرے کړے

رب العزة په مونږ ډیر او کړے احسان په قران
اللهؒ نثار کړے جملګی مُسلمانان په قران

رب العزة مولا داخپل قران آزاد کړے ته
زړه مبارک دَپاک محبوب مصطفیٰ خاد کړے ته

پاک محمدؐ مصطفیٰ کړے خوشحال هران په قران،
اللهؒ نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

مُسلمانانو پیځه وخته رب نه غواړی مُدام
دَپاک رب العزة په لوئے دربار کښے جاړی مدام

چه موږ و بنا نه کړی دروں زړه او چشمان په قران
الله نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

دوارو جهانو کښے عزت او شرافت همګی

دوارہ جہانو کښې نعمت او هم دولت همګی

ګڼړی قران کښې چه ایمان لری کوم خوان په قران

الله نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

جمله جوندون چه د چا خوخ په خپل قران وی خلقه

قران هم دغه غواړی دغه شرعی خوان وی خلقه

د شریعت په قانون جوند کړی فدایان په قران

الله نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

که په قران باندے فدائے او په پاک محمدؐ

دربانده کوان وی په رښتیا شهٔ لولاک محمدؐ

رازه توبه کړه نور ژوندون کوه هر شان په قران

الله نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

د محمدؐ امین فقیر الله ایمان کړے نصیب

سره د هر یو مسلمان نے داحسان کړے نصیب

مسلمانان کړے الله جملګی قربان په قران

الله نثار کړے جملګی مسلمانان په قران

بسم الله الرحمن الرحیم

اللهم ربنا الکریم العظیم الذی لا اله الا انت سبحانک کما انت
اهله اسئلک ان تصلی وتسلم علی حبیبک محمدؐ واله واصحابه
اجمعین صلاة تکون لک رضاء ولحقه اداء یا ذا الجلال والاکرام

بسم الله الرحمن الرحیم

دوارہ کونه د رقربان پاک محمدؐ — خاص محبوب د سبحان پاک محمدؐ

د الله د بے انداز علم په شمار — کرم هزار هزار عالمه درنثار



ستا د خاورے په صد هزار عزت — ماته ګرانے تر ګلونو د جنت

شه نصیب م دا ایمان او محبت — ستا په ډیر عزت او شان پاک محمدؐ

د عدم تیاره شوه ستا په مخ روښانه — اے محبوب لا ثانی شهٔ خوبانه

اے په رب العزة ډیر بے حده ګرانه — محترم شاه خوبان پاک محمدؐ

اے چه ایخے د قدم د بے په عرش فوق — د زره غوخے به وریته کرم په ډیر شوق

د باران په شان به جار په ډیر ذوق — که الله م شی مهمان پاک محمدؐ

د الله د بے حد علم په کرت — وسیله د شه نصیب په ډیر عزت

وی دا سوال م د تکرار تر قیامت — په ډیر ذوق او شوق ارمان پاک محمدؐ

په ډیر زیات ادب تعظیم او احترام — وی بیتا د الصلاة والسلام

ان ترابد الابد علی الدوام — شه نصیب د هر احسان پاک محمدؐ

دامت بیړی د ګیره د ګرداب کښے — او کړه سوال په لوئے دربار د وهاب کښے

یا الله مسلم نور م برید عذاب کښے — دغه سوال کوه هر آن پاک محمدؐ

مونږ هم ستا په مخ الله ایمان غواړو — مونږ هم ستا په مخ الله نه قران غواړو

مونږ هم ستا په مخ الله نه احسان غواړو — چه آزاد موشی قرآن پاک محمدؐ

تیرے لوے شه د فسق او د فجور — ستا د شکلی نورانی رخسار په نور

دغه سوال موشه په د درب منظور — ستا په جملګی فیضان پاک محمدؐ

دا وړاد محمدؐ امین ناتوان — ستا په شکلی مخ منظور که پاک سبحان

شه نسکور دا دفسق و فجور نشان — د دین پوره شه نشان پاک محمدؐ

بسم الله الرحمن الرحیم

سبحانک اللهم وبحمدک وشکرک کما انت اهله وتحب وترضی فی کل
لمحة ونفس عدد علمک وعظمت وزنة کبریائک وکذالک الصلاة والسلام

علی بحر انوارک ومعدن اسرارک ولسان حجتک محمدؐ واٰله واصحابه اجمعین ؕ اسئلک اللّٰهم انصر من نصر دین حبیبی محمدٍ صلی الله علیه وسلم واخذل من خذل دین حبیبی محمدٍ صلی الله علیه وسلم لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظلمین ؕ برحمتک یا ارحم الراحمین ؕ

بسم الله الرحمٰن الرحیم

څما دیر ښکلے دلبر - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
خاص محبوب د پاک اکبر - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
چه داغلے په قران دے - مونږ راوړے په ایمان دے
زمونږ دیر ښکلے رهبر - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
والضحیٰ ئے رو بنا نه - کړه والله دواړه جهانه
زیات له شمس وله قمر - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
چه مازاغ لری چشمان - هم واللیل لری زلفان
ډیر ښائسته په سر - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
د ظله خلعت په غاړه - ترے قربان شه خوبان واړه
د خوبانو دزړه سر - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
د محشر څکو خبر شئ - راروان په ستر کو سرشئ
ناست په غاړه د کوثر - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
ده جرګه د مرسلانو - جمعه شوے مؤمنانو
د همه جرګے سرورو - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

---

عه په ریاض الجنة کښے په څائے د پاک دا دیر مبارک عرض شو۔
بیت۔ خاص محبوب د پاک اکبر دا محمدؐ مصطفیٰ دے ۱۲ الخ۔ مداح عفی عنه۔



ګران په ما په خدائے قسم - تر هزار هزار عالم
په یقین او په باور - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
د فقیر محمد امین - یا اله العالمین
وسیله ستا په پاک در - پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

بسم الله الرحمٰن الرحیم

اللّٰهم ربنا الکریم العظیم الرؤف الرحیم لک الحمد والشکر و اسمائک الحسنیٰ وجمیع صفاتک فی کل لمحةٍ ونفسٍ من السنة ولطائف ذراة الکائنات الکبریائیة عدد علمک وزنة کبریائک وشرافة وعزة اسمائک الحسنیٰ وجمیع صفاتک کما انت اهله وتحب وترضیٰ وکما ینبغی لجلال وعزة وشرافة ذاتک الحق المقدس الاغیر المنتقم الاطهر وکذالک الصلٰوة والسلام والتحیة علی اشرف الانبیاء والمرسلین وعلیٰ اٰله واصحابه اجمعین ؕ اسئلک من خیر ما تعلم واعوذبک من شر ما تعلم انک تعلم ولا نعلم وانت علام الغیوب ؕ واعوذبک من الهم والحزن واعوذبک من العجز والکسل واعوذبک من البخل والجبن واعوذبک من غلبة الدین وقهر الرجال واکفنی بحلالک عن حرامک واغننی بفضلک عمن سواک۔ سبحان ربک رب العزة عما یصفون وسلام علی المرسلین ۵ والحمد لله رب العٰلمین ۵

بیت

بے له تا څوک نشته جمله تر ئے پتا م قسم
ما دا دعوے ستا د لو ئے علم په شمیرے کړیدی
دیره خپله او دیره لویه بے پروا او ارحم الراحمین خاونده

## (جُملہ ھم تہ ئے)

ماشآء اللہ لاحول ولاقوۃ الاباللہ العلی العظیم لاملجأ من اللہ
الاالیہ۔ کہ جملہ کائنات دمحشر کبریائی ذرے کڑے۔ او ذرہ پہ مقدار
داخوجز د تقسیم وی۔ او دکل ذرو پہ پورہ شمیر دھرے ذرے ڈبے
اولطائف سبعہ کڑے او پہ جملہ ڈبو او لطائفو لہ ازل نہ ترابد
پہ ھزار ھزار اخلاص او احسان او شوق او ادب نیاز او محبت
ذوق او لذت پہ ظاھری او باطنی اشغالو د ذکر او فکر او مراقبے
پہ جملہ طاعاتو دصوم وصلاۃ حج وزکوۃ تبلیغ وجھاد استغفار
وترجیع وشکر وصبر ستا پہ توفیق او ھدایت ستا دعلم پہ مقدار
پہ لمحہ لمحہ کینے دا ذرے مشغولے وی چہ تہ پرے خوشحالیگے او رضا کیگے۔
نو اللھم ربنا الکریم العظیم دا منکور جملہ احسان کہ ستا پہ
یوہ یوہ ذرہ جدا جدا اوشی۔ نو تہ د دے احسان لائق ئے۔ او تا
سرہ خائی۔ او دا احسان دومرہ آسان کولے شے لکہ یو ذرہ دیو
اړخ ندیہ بل اړخ اړہ وے۔ سبحان الملک الخلاق فتبارک اللہ
احسن الخالقین ماشاء اللہ لاحول ولاقوۃ الاباللہ العلی العظیم
نو یا ډیرہ خیلہ او ھزار ھزار وارے بیا بیا ترابد الابد ډیرہ
خیلہ خاوندہ مولا ربنا د ازل نہ ترابدہ پہ ھرہ ساہ دے اذنب
المذنبین احقر الوری خادم الاسلام محمد امین بن محمد اسعد
دا احسان جاری او لرے۔ ماشاء اللہ تعالی لاقوۃ الاباللہ العلی العظیم
اللھم ربنا الکریم العظیم انک امرت بالدعاء وقضیت علی نفسک بالاجابۃ۔
وانک لا تخلف المیعاد۔



بسم اللہ الرحمن الرحیم

جُملہ ھم تہ ئے واللہ ھیخوک بے لتا نشتہ دے
ھزار ھزار دلائل شتہ خوخوک بینا نشتہ دے
لیدل پہ ستر گو خو څہ دا ستر گے او لیدل ھم تہ ئے
جملہ محبوب دے و لے څہ کڑمہ شیدا نشتہ دے
ما تہ ازل نہ ستا د مینے تعلیم تا کڑے دے
بل معلم څما قسم پتا بے تا نشتہ دے
ھرہ لحظہ ستا پہ دار صد ھزارہ منصور څیخی
ستا د دارونو منصورونو انتھا نشتہ دے
جلوہ د رب ارنی پہ طور موقوفہ ندہ
ھرہ ذرہ طور دے خو څہ کرم موسی نشتہ دے
ھزار ھزار فردوسہ ستا د یو لمحے تر ھغا
ما تہ کم ښکاری واللہ بلہ م سودا نشتہ دے
ستا د پاک حسن تماشا تا سرہ خائی واللہ
ھرخوک لائق ستا د پاک مخ پہ تماشا نشتہ دے
ستا پہ دربار د محمد امین عاجز ناتوان
وسیلہ بلہ بے محمد مصطفی نشتہ دے

بسم اللہ الرحمن الرحیم

سبحانک اللھم وبحمدک کما انت اھلہ وتحب وترضی اشھد ان لا الہ
الا انت سبحانک انی کنت من الظلمین استغفرک واتوب الیک توبۃ
عبد ظالم لایملک لنفسہ ضرا ولانفعا ولاموتا ولاحیوۃ ولانشورا

فی کل لمحۃٍ و نَفَسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک وکذالک الصّلاۃ
والسّلام علیٰ اشرف الانبیآء والمرسلین وعلیٰ اٰلہٖ واصحابہ اجمعین
ماشاء اللہ لاحول ولاقوۃ الا باللہ العلی العظیم ۰

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

اللّٰھم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکر فی کل لمحۃ ونَفَس من
اَلسِنۃ ولطائف ذرات الکائنات الکبریائیہ عدد علمک وزنۃ کبریائک
کما انت اھلہ وتحب وترضیٰ وکذالک الصّلاۃ والسّلام علیٰ سیدنا
وحبیبنا وکریمنا محمدؐ واٰلہٖ واصحابہ اجمعین ۰

اگرچہ لہ دے عاجز شرمندہ بندہ احقر الورٰی ځنې خپله او
بیا بیا ډیرہ خپلہ مولا ربنا ستا مناسب طاعت او معرفت نہ شی کیدے
لیکن ستا پہ ذات مقدس م ستا دَ علم پہ مقدار پہ لمحہ لمحہ دَ ابد
الابد کښې قسمونہ وی. چہ تا تہ ډیرہ ښہ معلومہ دہ. ازل نہ دَ دے عاجز بندہ
ارادہ او نیت دے چہ ستا رضا او لقا دپارہ ستا طاعت او معرفت ئے
دومرہ خوخ او مطلوب دے. پہ ھزار ھزار خلوص او ادب او نیاز او
عشق وشوق چہ کہ دَ جملہ عالم ظاھری او باطنی ټولہ نیکئے چہ دی
پہ ھر نیک نسبت ھغہ جملہ دَ دے عاجز او بے وس فقیر پہ ھر یو
نَفَس جاری کړے تر ابد الابد. نو ھم دغہ ئے ډیرہ خوښہ دہ. دَ دے
مدت او مقصد او مطلب دے. او دغہ ئے ایمان او عقیدہ دہ. او دغہ
ئے لتا نہ سوال ونہ دی ستا دعلم پہ مقدار پہ لمحہ لمحہ دَ جملہ جوندون
دَ ابد الابد کښې پہ شرافت دَ وجہ الکریم العظیم او قدیم ستا او پہ
وسیلے دَ محبوب کریم ستا علیہ افضل الصّلاۃ والسّلام. او دا احسان



ستا دَ بے نہایت دریاب دَ فیض ځنې یو نم ادنیٰ دے. ماشاء اللہ
تعالیٰ لاحول ولاقوۃ الا باللہ العلی العظیم ۰ سبحان ربک رب العزۃ
عما یصفون ۰ وسلام علی المرسلین ۰ والحمد للہ رب العٰلمین ۰

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

خائی تا لہ جملہ ثنا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
کریم او حکیم او قدیم خاوندہ — خبیر او بصیر او علیم خاوندہ
حق ستا کل اسماء الحسنیٰ ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
یقیناً چہ مونږ عاصیان ناتوان — ستا نہ شو کولے طاعت ھغہ شان
چہ کوم شان خائیگی لتا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
دَ جملہ عالم جملگی طاعتونہ — دَ جملہ عالم جملگی نعمتونہ
پہ صد شوق ادب او حیا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
پہ ھر یو نَفَس کہ دَ دے عاجز خوار — مولا شی دَ لوئے علم ستا پہ مقدار
واللہ اٰمنّا صدقنا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
دَ روزِ ازل نہ م یوئے پہ نیت — واللہ ئے خاوند دَ ډیر لوئے قدرت
قدرت نہ دِ زارشم بیا بیا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
پہ ھرہ ذرہ کښې دِ شان دَ قدرت — ښکاریگی چہ ھر خوک لری بصیرت
پہ شان دَ نور ھویدا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
ھزاران خورشیدہ پہ شان دَ ذرے — آسان پہ قدرت کښې خاوندہ لرے
پہ کُن فیکون ذو العلا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا
محمدؐ امین یا اللہ صمد — وسیلہ کوی تا تہ پاک محمدؐ
لہ ھر مسلمان شے رضا ربنا — مولا ربنا یا مولا ربنا

بسم الله الرحمن الرحیم اللهم ربنا الکریم الرؤف الرحیم لک الحمد والشکر کما انت اهله وتحب وترضیٰ فی کل لمحةٍ ونفسٍ عدد علمک وزنة کبریائک وکذالک الصلاة والسلام علیٰ اشرف واکرم وافضل الانبیآء والمرسلین محمدؐ واٰله واصحابه اجمعینؓ واعطه الوسیلة والفضیلة یا ذا الجلال والاکرامؕ

بسم الله الرحمن الرحیم

جهان روښان ستا په جمال علیک صلیٰ الله
رب مو نصیب کړه ستا وصال علیک صلیٰ الله
ستا په روښانه مخ رب لوړے کړه تیاره دَ عدم
په در درب العزة نشته ستا په شان محترم
خدائے پیدا کړے نے بے مثال علیک صلی الله
جهان روښان ستا په جمال علیک صلی الله
محبوبه صد هزار فردوسه پرله عیش و عشرت
قبول به نکړمه قسم په خپل پاک رب العزة
ستا په یوه لمحه ملال علیک صلی الله
جهان روښان ستا په جمال علیک صلی الله
مخ والضحیٰ زیبا دلبره محمدؐ عربی
اشرف الانبیاء سروره محمدؐ عربی
محبوب دَ پاک رب ذو الجلال علیک صلی الله
جهان روښان ستا په جمال علیک صلی الله
دا م ارمان او تمناده په روح و جګر کښے



چه ستا دَ عشق و محبت په تیغ هم ستا په در کښے
هزار هزار ارځل شم حلال علیک صلی الله
جهان روښان ستا په جمال علیک صلی الله
تیکے دَ ذره م وے په اور دَ محبت کښے وه یتے
ستا دَ در سپوږمۍ هم په خاورو ستا دَ در وے پرتے
دا م ارمان دا م آشکال علیک صلی الله
جهان روښان ستا په جمال علیک صلی الله
ما نادان پوهے کړه الله ستا دَ قربانئے په ادب
ستا په زیبا رخسار م سوال دے په دربار دخپل رب
ربه قبول کړه دغه سوال علیک صلی الله
جهان روښان ستا په جمال علیک صلی الله
دَ محمدؐ امینؒ فقیر عاجز عاجز شعرونه
الله قبول کړه ستا په مخ شه نے نصیب اجرونه
ستا دوصال آب زلال علیک صلی الله
جهان روښان ستا په جمال علیک صلی الله

بسم الله الرحمن الرحیم

اللهم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکر کما انت اهله وتحب وترضیٰ فی کل لمحةٍ ونفسٍ عدد علمک وزنة کبریائک وکذالک الصلاة والسلام علیٰ اشرف الانبیاء والمرسلین محمدٍ واٰله واصحابه اجمعینؓ۔ که جمله کائنات ذرے کړے. او هره ذره په وزن او قدر دَ اخر جزد تقسیم وی۔ نو بیا دَ هرے ذرے جبے او لطائف

سبعه پر شمیر دَ دغو کل ذرو کړے. او په جمله جبوا ولطائفو
خاوندا کریما ډیره پاکه خپله مولا ته په هغو حمدو نو شکرونو
ذکرونو صلوٰة وصوم حج و زکوٰة سخا و ایثار استغفارو تجیع
امر بالمعروف نهی عن المنکر مراقبو تفکراتو احوالونه دَظاهر
او باطن په هزار هزار عجز وادب اخلاص وصدق شوق او
محبت ستا ئلے شی. ستا د علم په شمیر هره لمحه او لحظه او طرفه او
نَفَسْ دا بد الابد کیني چه تا سره خائیږی او ته په رضا کیږے.
او خپله لقا مبارکه پر احسان کړے.

نو دا جمله احسان په دے جمله ذرو مذکورو دَ کائنات ستا
دَ احسان دَ بے پایان دریاب څخه یو نم ادنیٰ دے. ماشاء الله
لاحول ولاقوة الا بالله العلی العظیم ؕ

نو اللّٰهم ربنا الکریم الرؤوف الرحیم العظیم القدیم ته
دَ دے عاجز شرمنده شکسته بنده خوار خپل سره په هر نَفَسْ
دَ ابد الابد کیني دا احسان په آبرو او جمله شرافتونو جمله پیغمبرانو
علیهم الصلاة والسلام او دوستانو خپلو او کړے. لاحول ولاقوة
الا بالله العلی العظیم ؕ او هم دا ئے مراد مقصود مطلب ایمان
او ایقان نصیب کړے.

او که دا شرمنده خجل او ملامت عاجز له دے مذکور بیا نه
غافل شی نو دا خو دَ ده خوار نه دے قسم پتا چه هم ستا دے. نو
دا مذکور سره دَ جمله مذکورو عرضونو دِ سره دغفلت دَ دے عاجز ستا
په دربار مبارک یاد وی. لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظّٰلمین ؕ



اللّٰهم صل وسلم وبارک کما انت اهله وتحب وترضیٰ عدد
علمک وزنة کبریائک علیٰ حبیبک محمد ؐ وآله واصحابه اجمعین ؕ
برحمتک یا ارحم الراحمین ؕ

بسم الله الرحمٰن الرحیم

اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا
ستا د علم په لوئے شمار
چه لتا سره خائیږی
په محمد ؐ او محمود ؐ
وی دِ یا رب العزت
بیا دا جمله په شمیر کړے
وی دا هره یو ذره
لوئی خاص تاله ثنائی
جبے وی د کل ذرو
له قدرت نه دِ قربان
په دے جمله بیا تا ستائی
ستا دَ علم په لوئے شمار تل
په کل هغو ادبونو
زار شم ستا تر هرادبه
آن تر ابد الابده
ملامت او بے عمل
تر ابده جاری ربه

تاله کل حمد و ثنا
ابد الابد خاوندا
هم لتا نه صادریږی
هم په آل و په اصحابو
لوئے خاوند دَ لوئے قدرته
دَ آخر جزو د تقسیم
په انداز خپله پوره
بیا دکل ذرو په شمار
دَ جمله خوردو ورو
دجمله ذرو وی ربه
هغه شان چه تاله ښائی
هر نَفَسْ هره طرفه
په کل هغو نسبتونو
چه لتا سره خائیږی
بے نیاز مولا صمده
وی دِ هر نَفَسْ طرفه
ډیره تا ته زاری ربه

ستا دَ علم په مقدار
الله الصمد خاوندا
او هم دغسے دَ ی و د
ډیر خوشبویه تر گلابو
کائنات چه کل ذرے کړے
په انداز یا رب کریم
دَ محشر کبریائی
په پوره انداز مقدار
لطائف هم په دا شان
شم لوئے ستا تر ادبه
ستا دَ علم په مقدار تل
هم لحظه او په لمحه
دَ ظاهر او باطن ی به
او هم ته نه صادریږی
ددے خوار بنده خجل
او هم هره یو لمحه
په دے شان مذکور مولا

کړے د اسوال منظور مولا
په پاک مخ د محمد پاک
هم د جملې دوستانو
اللهم ربنا
په لیکلو هم حیران یم
که یو ذره اسا دم
لوے رب توان هسے
په شرف ... ل احسان
ستا کو بیان تر هیر شی
تر ابده هرمذ کوم
تر حساب تیر خپله ربه
په دیر شکلی محمد پاک
هم په جمله احبابو

کړے د اسوال مقبول مولا
ستا په ذکر ایا صمد پاک
په ابرو د اسوال منظور کړه
زه نادان په دے وینا
نه په کړو بوئے او قادر ئے
په ابح الهو مے سبحانه
کړے نصیب د ایمان
جود کرم او د فیضان
مولاتا ته خو په یاد
دد دیر خوار پر قصور
بس درود او دیر سلام
نازه ولی محمد پاک
ارحم الراحمین ربه

کړے د اسوال معمول مولا
هم د کل پیغمبرانو
دا عاجز فقیر مسرور کړے
په ویلو هم حیران یم
زیات تر حد لوئے او قادر ئے
دا کار تا ته اسان هسے
په شرف د دے لوئے توان
دد خوار غفلت که دیر شی
ستا په یاد د زنده باد
د دے خوار دیر خپله ربه
په هزار شوق احترام
هم په ال و په اصحابو
مجیب السائلین ربه

دعا جز محمد امین کړے نصیب ایمان آمین
سره د همه دوستانو د همه مسلمانانو

سبحان ربک رب العزة عما یصفون و سلام علی المرسلین و الحمد لله رب العلمین

بسم الله الرحمن الرحیم

اسئلک اللهم ربنا الکریم العظیم بوجهک الکریم العظیم و بوجه حبیبک الکریم العظیم ان تصلی و تسلم علی اشرف الانبیاء والمرسلین محمد و اله و اصحابه اجمعین و اعطه الوسیلة و الفضیله والدرجة الرفیعة. فی کل لمحة و نفس عدد علمک وزنة کبریائک کما انت



اهله یا ذا الجلال والاکرامه

بسم الله الرحمن الرحیم

نور د ستر گو د زړه سر پاک محمده
د جمله وو معشوقو د زړه سره
د خلوت د لامکان دلبر انوره
د عدم تیاره شوه ستا په مخ روښانه
کران په درد مولا څوک نشته لتانه
د نبیانو د محفل شمعه د نور ئے
هم اخر او هم اول مشعل د نور ئے
که ذرے د کائنات م شی روحونه
صد هزار هزار ځله هر دم قسمونه
دومره بے حده دیر ئے را باندې گران
دے را وړے والله حق دے دا بیان
صد هزار هزار فردوسه په قسم
د الله په در ئے دومره محترم
په یوه غمزه د ناز به پاک دلبره
دومره دیر حسن لرے نور البصره
وسیله د رب نصیب کړه په حرمت خپل
وسیله د رب نصیب کړه په قربت خپل
دا محمد امین جاری بینوا
مات کچکول کښے د دیدن غواړی نوا

تر جمله عالم بهتر پاک محمد
د مخ نور دے عرش پورته تلے بره
خاص محبوب د پاک اکبر پاک محمد
لاثانی او بهترین دلبر ذی شانه
د جمله عالم سرور پاک محمد
تر همه عالم افضل مشعل د نور ئے
زیات له شمس و له قمر پاک محمد
ستا په در به ئے لوګے کړم هم گردونه
په ایمان او په باور پاک محمد
چه په حقه م پتا باندے ایمان
اے په حقه پیغمبر پاک محمد
ما منلی ستا د زلفو په هر خم
پاک حضرت خیر البشر پاک محمد
کړے برپا والله هزار هزار محشره
لاثانی جبین انور پاک محمد
وسیله د رب نصیب کړه په عزت خپل
دیر قریب د خدائے په در پاک محمد
که بلبل په گل جړیږی خوشنوا
ورکره خیر دیر بختور پاک محمد

بسم اللہ الرحمن الرحیم

اللھم ربنا الکریم العظیم لک الحمد والشکر والجلال والجمال واسمائک الحسنیٰ وجمیع صفاتک کما انت اھلہٗ وتحب وترضیٰ فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک کما انت اھلہٗ وتحب وترضیٰ۔ اسئلک بوجھک الکریم وبوجہ نبیک الکریم ان تصلی وتسلم علی اشرف انبیائک محمد وآلہٖ واصحابہٖ اجمعین صلاۃً تکون لک رضاءً ولحقہٖ اداءً فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک کما انت اھلہٗ وتحب ترضیٰ یا ذا الجلال والاکرام

بسم اللہ الرحمن الرحیم

ښکلے جانان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
دَ عالم جان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
دمرسلانو دَ محفل مشعل دَ نور دے لاثانی
عجب روښان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
چہ دَ عدم تیارہ ئے شوہ پہ تجلو دَ مخ رڼرا
عجب ذیشان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
هزار هزار عالمہ کرم واللہ لوئے دَ یار پہ در
خوخ هسے شان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
دَ ذړکی غوخ ورېتہ وُم دعا شقئے پہ سرو لنبو
ښکلے مهمان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
کہ دَ عالم روحونہ شی پہ هر نفس م هزار حُل
تر و اړو گران محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
رضوانہ خاورے ښکلوہ حُما دَ یار دَ پاک دربار



ډیر قدردان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
دعرش نہ ډیر پورتہ واصل پہ صد هزار هزار عزتہ
پہ لامکان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے
کړی محمد امین اقرار، دَ رب دَ لوئے علم پہ شمار
دین وایمان محمد مصطفیٰ م فخرِ عالم دے

بسم اللہ الرحمن الرحیم

اللھم انت اللہ الذی لا الٰہ الا انت سبحانک، کما انت اھلہٗ انی کنت من الظٰلمین۔ اعوذ برضائک من سخطک وبمعافاتک من عقوبتک اعوذبک منک لا احصی ثناءً علیک کما اثنیت علی نفسک فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عددَ علمک وزنۃ کبریائک، اللھم صل وسلم وبارک علیٰ حبیبک ونبیک محمد صلی اللہ علیہ وآلہٖ واصحابہٖ وسلم فی کل لمحۃٍ ونفسٍ عدد علمک وزنۃ کبریائک کما انت اھلہٗ وتحب وترضیٰ یا ذا الجلال والاکرام

بسم اللہ الرحمن الرحیم

اللھم ربنا رضا لقا ستا — کړے نصیب مو پہ پاک مخ دَ مصطفیٰ ستا
ستا رضا او ستا لقا رب العزتہ — کړے نصیب مولہ زیبا مخ دَ حضرتہ
خپل خاوندہ دَ احسان فیضان قدرتہ — ستا پہ لوئے دردغہ سوالے دَ گدا ستا
اللھم ربنا رضا لقا ستا — کړے نصیب مو پہ پاک مخ دَ مصطفیٰ ستا
ستا دَ علم پہ کرت موږ غوښتہ سوال دے — ستا دَ علم پہ عظمت موږ غوښتہ سوال دے
پہ هزار عجز و ذلت موږ غوښتہ سوال دے — پہ پاک مخ دَ بهترین محبوب زیبا ستا
اللھم ربنا رضا لقا ستا — کړے نصیب مو پہ پاک مخ دَ مصطفیٰ ستا

اللهم په عزت ستا د جلال
اللهم په زینت ستا د جمال،
اللهم ربنا رضا لقا ستا
یا الله په لوئ عزت ستا د ذات پاک
اللهم په عظمت ستا د ذات پاک
اللهم ربنا رضا لقا ستا
اللهم په ډیر زیات پاک نوم احد ستا
اللهم په ډیر زیات احسان بې حد ستا
اللهم ربنا رضا لقا ستا
چه لتا سره خائیږي ستا کرم
چه لتا نه عطا کیږي ستا کرم
اللهم ربنا رضا لقا ستا
اللهم په عزت ستا د قران
اللهم په نعمت ستا د قران
اللهم ربنا رضا لقا ستا
اللهم په رخسار د محمد ﷺ پاک
په جمله بښکلي کردار د محمد ﷺ پاک،
اللهم ربنا رضا لقا ستا
محمد امین سره د ګرد دوستانو
په حق سوال کوي اې مجیب د سائلانو
اللهم ربنا رضا لقا ستا

اللهم په لذت ستا د وصال
اللهم په احسان بې انتها ستا
کړې نصیب مو په پاک مخ د مصطفیٰ ستا
یا الله په شرافت ستا د ذات پاک
په بې حده لوئ عالي شانِ اعلیٰ ستا
کړې نصیب مو په پاک مخ د مصطفیٰ ستا
اللهم په ډیر زیات پاک نوم صمد ستا
اللهم په ډیر لوئ شان کبریا ستا
کړې نصیب مو په پاک مخ د مصطفیٰ ستا
چه لتا نه صادریږي ستا کرم
په هغه شان د عطا او د سخا ستا
کړې نصیب مو په پاک مخ د مصطفیٰ ستا
اللهم په عظمت ستا د قران
اللهم په قران بې حد صفا ستا
کړې نصیب مو په پاک مخ د مصطفیٰ ستا
په عزت حیا و قار د محمد پاک
چه ترې هیڅوک نشته کړان په دا اعلیٰ ستا
کړې نصیب مو په پاک مخ د مصطفیٰ ستا
د جمله اهلِ اسلام مسلمانانو
په عزت د جمله اسماء حسنیٰ ستا
کړې نصیب مو په پاک مخ د مصطفیٰ ستا



# محبوبه خپله

په خپل رب العزة جل جلاله مې د قسم وی۔ چه که د کل عالم روحونه زما په هر نفس (ساه) شي۔ چه د خپل رب العزة جل جلاله د علم په شمار یې ستا په دربار لوګے لوګے کړم۔ ماشاء الله لا قوة الا بالله ط

هزار هزار عالمه ذار د محمد ﷺ مصطفیٰ
د رب د لوئ علم په شمار د محمد ﷺ مصطفیٰ
چه یې روخانه شوه په مخ تیاره د جمله عالم
عرش نه تر فرشه هم ذره د مخ انوار دی قسم
لري هزار هزار فردوسه یې د زلفانو هر خم
رب دې نصیب کړي دا انوار د محمد ﷺ مصطفیٰ
زما یا ډیرې هغه ډیر بښکلي حرم د محبوب،
نه مې هیریږي هغه ډیر بښکلي حرم د محبوب
امید مې کیږي هغه ډیر بښکلي حرم د محبوب
په شرافت د پاک رخسار د محمد ﷺ مصطفیٰ
که مې په هر نفس روحونه شي د جمله عالم
دغه ایمان او عقیده لرم په رب مې قسم
د خپل رب العزة د علم په لوئ شمار په هر دم
کړم به یې لوګے په پاک دربار د محمد ﷺ مصطفیٰ
اشرف الانبیاء محمد ﷺ مصطفیٰ عربي
محبوبِ کبریا محمد ﷺ مصطفیٰ عربي
جمله نور و ضیا محمد ﷺ مصطفیٰ عربي

الله نصیب مو کړے ګلزار دَ محمدؐ مصطفیٰ
که ہم هزار هزار عالمه شی دفتر په قسم
دا ہم ایمان دا ہم ارمان دا ہم باور په قسم
کړم به ئے لوګے او سپیلنی دَده په در په قسم
هسے فدا یم او نثار دَ محمدؐ مصطفیٰ
دَ محمدؐ امینؐ نصیب کړے دا جانان خاوندهٔ
ستا دِ قسم وی په لوئے شان دَ خپل احسان خاوندهٔ
چه دَ فردوس په لوړ منبر کړے نعت خوان خاوندهٔ
دا ملامت خجل بیمار دَ محمدؐ مصطفیٰ

## (محبوب کبریا)

اوس خو کُل اته جنتونه دی. که هزار هزار یعنی لس لاکه جنتونه شی. ستا دَ شکلی نورانی مخ به یوه جلوه دَ دغو جمله وو جنتونو سره برابره وی۔ رب العزة دِ دَ جمله عاشقانو نصیب کړی. آمین

اشرف الانبیا محمدؐ مصطفیٰ عربی
جمله نورو ضیا محمدؐ مصطفیٰ عربی
دَ مرسلانو دَ جرګے صدر العلیٰ محترم
ازل لاله کړو مولا محمدؐ مصطفیٰ عربی
دَ جملګی عالم خوبان ګیر دی په دام دَ مینے
ځما دَ دلربا محمدؐ مصطفیٰ عربی
ما دَ ازل ځنے راوړے په مولا ہم قسم
دَ عاشقئے سودا محمدؐ مصطفیٰ عربی



یوه جلوه ده دَ رخسار هزار هزار جنته
زما دَ محبوبا محمدؐ مصطفیٰ عربی
دَ رب دَ لوئے علم په شمار ہم قسمونه مدام
ښکلے جانان ځما محمدؐ مصطفیٰ عربی
طبیبه لا ړشه نشته تا سره مرهم دَ زخم
زما دَ زړه دوا محمدؐ مصطفیٰ عربی
رب العزة دِ کړه نصیب خوار محمدؐ امینه
محبوب کبریا محمدؐ مصطفیٰ عربی

## رءوف الرحیم محبوبه

که دَ جیانه روغ دَ مازاغ په سلائی تورے سترګے مبارکے دِ په ناز پورته کړے. هزار محشرونه به دَ شوق و عشق په میدان برپا کړے: دَ زړه تیکے خو به دی ته وړیتے کړم. رب العزة دِ ځما میلمه کړه. آمین

اشرف المرسلین محمدؐ مصطفیٰ عربی
سرورِ بهترین محمدؐ مصطفیٰ عربی
زه به ئے دیدن کوم چه راشی په میدان دَ محشر
شفیع المذنبین محمدؐ مصطفیٰ عربی
دعاشقانو کړے نصیب رب العزته مولا
زلفانِ عنبرین محمدؐ مصطفیٰ عربی
په دوا ړو کونو یس آرام او تسلّه ده والله
ځما دَ زړهٔ غمګین محمدؐ مصطفیٰ عربی
ځما محبوب دے خوړم قسم د رب دَ علم په شمار

سه او تسله ده هزار رحل ۱۲

تل په حق الیقین محمدﷺ مصطفیٰ عربی
هزار محشره به برپا کړی که په نا ایوزه کړی
عینینِ نرگسینِ محمدﷺ مصطفیٰ عربی
تیکے د زړه به کړم ورېتے که مې میلمه کړی مولا
دلبرِ نازنینِ محمدﷺ مصطفیٰ عربی
الله نصیب کړے هم په مخ د محمدﷺ مصطفیٰ
د محمد امینؒ محمدﷺ مصطفیٰ عربی

## وجهُ الجمیل محبوبه

ستا د وا للیل زلفانو په هر خم کښے د کل خوبانو جمال رب العزة جلّ جلالهٗ وعمّ نوالهٗ ایخے دے. صد هزار هزار یعنی لس کروړه ۱۰۰۰۰۰۰۰۰ اخترونه له هغه محشر نه قربان شه. چه په میدان د شفاعت کښے ته جلوه گر ئے د عاشقانو نصیب شے. آمین

حُما ډیر ښکلے جانان پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے
بِما ډیر بے حده گران پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے
چه تیار ئے د عدم - شوه رڼا په مخ قسم
خاص محبوب د پاک سبحان پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے
دالله په پاک دیدار - به هزار شرف وقار
مشرف په لامکان پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے
چه هر خم کښے د زلفانو - شته جمال د کل خوبانو
رب ستائیلے په قرآن پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے
صد هزار هزار اختره - شه قربان له دے محشره



چه ولاړ ئے په میدان پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے
شه نصیب د عاشقانو - راپا سیګی تشنگانو
د کوثر په لوړ روان پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے
د محمد امینؒ خوار - الله کړے نصیب دیدار
د زخمی زړه ئے ارمان پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے

## طرف الکحیل محبوبه

داغه جوندون دے. ته اُورے او بینوا دلے دے. ستا په ډیر ښکلے مخ مبارک رب العزة جل جلالهٗ وعمّ نوالهٗ ته سوال دے. چه بیا م ستا په حضور کښے په هزار هزار رحیا او ادب ذوق و شوق ایمانا او احتسابا جهل نصیب کړی. آمین ثم آمین ثم آمین

د مرسلانو د جرگے ډیر محترم محبوبه
ډیر م ارمان دے ستا زیبا ښکلے حرم محبوبه
داځه جوندون دے ته اُورے اوزه دلے دلبره
تاله درزی د عاشقانو قافلے دلبره
زه مهجور دلته تویه وُم دستر گونم محبوبه
د مرسلانو د جرگے ډیر محترم محبوبه

سه الحمد لله تعالیٰ کما هو اهله چه رب العزة جل جلاله دا سوال قبول کړو. او نن په ریاض الجنة کښے بالکل پیوست پنجرے مبارکے پورے دا نعت عرض کیدے شی. رب العزة جل جلاله دِ په شانِ کریمی خپل اوس دَ دے ځائے جمله حرکات سکنات سوال دعا زاری دَ دے ځائے مبارک په وجه الکریم او عظیم خپل او په وجه الکریم د محبوب کریم خپل دا منظور کړے. آمین عدد علم الله تعالیٰ — ۸ ربیع الثانی ۱۳۷۲ھ - بعد نماز عصر - مداح عفی عنه ۱۲

که م په هر نفس روحونه شي دَ جمله عالم
کړم به ئې لوګې په در کښې ستا په خپل مولام قسم

دا م ایمان دا م ارمان دے په هر دم محبوبه
دَ مرسلانو دَ جرګې ډېر محترم محبوبه

ستا دَ پاک مخ له برکته په مذهب کښې دَ عشق
مونده لې مادې له ازله په مشرب کښې دَ عشق

هزار فردوسه ستا دَ زلفو په هر خم محبوبه
دَ مرسلانو دَ جرګې ډېر محترم محبوبه

چه ئې دَ عرش په منارو دور دَ عزت غګیګي
ځما په زړه ستا د حرم هغه زینت وریګي

کله به ئې بیا دَ خدائې په فضل او وینم محبوبه
دَ مرسلانو دَ جرګې ډېر محترم محبوبه

ستا په ډېر ښکلي مخ م سوال ستا دَ حرم دے له رب
چه م نصیب کړې په هزار هزار حیا او اَدب

چه هلته جار م زړه زخمي قلم قلم محبوبه
دَ مرسلانو دَ جرګې ډېر محترم محبوبه

دَ محمد امین محبوبه محمد مصطفیٰ
اشرف الانبیا مطلوبه محمد مصطفیٰ

ما خوار منظور کړه ستا دِ وی په خدائې قسم محبوبه
دَ مرسلانو جرګې ډېر محترم محبوبه

مَاشَاءَ الله لَا قُوَّةَ اِلَّا بِالله ط



## ډېر ګران محبوبه

په مبارک مخ دِ دوارو کونه روښانه دی هزار هزار کرت - یعنی لس لکه کرت په ستاسو په تشریف راوړو محشر اختر شی. دَ مرسلانو دَ جرګې معتبره. ښکلي دِ رب پاک ستاسو په جام دکوثر سیراب کړی. دَ مشتاقانو نصیب شې. آمین

---

په لوئې میدان کښې د محشر محمد مصطفیٰ رازی
ښکلې محبوب ښکلې دلبر محمد مصطفیٰ رازی

چه دوارو کونه ئې روښانه دی دَ مخ په تجلو
هغه زیبا او جلوه ګر محمد مصطفیٰ رازی

دَ عاشقانو دِ نصیب شي په هزار هزار کرت
محشر به اوس شي پرے اختر محمد مصطفیٰ رازی

لاس په نامه شو مرسلان تعظیم دَ پاره دَ حضرت
دَ مرسلانو معتبر محمد مصطفیٰ رازی

دَ محشر تکودا پا سیرئې مبارک موشه زر حُل
اوس به قسمت له دکوثر محمد مصطفیٰ رازی

دَ دوارو کونو آبروئې، دَ دوارو کونو خوبروئې
چه ئې مونده شوه په پاک در محمد مصطفیٰ رازی

دَ محمد امین اقرار- دَ رب دَ لوئې علم په شمار
ځما محبوب حق پیغمبر محمد مصطفیٰ رازی

---

## ډېر مهربان محبوبه

که م په هر نفس (رساه) دَ کل عالم روحونه شي- او دَ سیالئې په

میدان کښے د قربانئ امتحان راغے. والله رب العزة جل جلالهٗ وعمّ
نوالهٗ به م په شرافت د عشق ستا فتحه مند کړی. ذٰلِکَ فَضْلُ اللّٰهِ
یُؤْتِیْهِ مَنْ یَّشَآءُ اوخپله خوبی ې نصیب شه. آمین

ازل نه یم د محمدؐ محبوب د عشق په دام بندی
محمدیؐ یمه والله محمدؐی محمدیؐ

په هر یو رګ کښے نشه ې له عشقه د محبوب
لیکلی دام له ازل نه خپل مولا دی په تندی

که م په هر نفس روحونه شی دکل عالم پیدا
د قربانئ په ورز به وی قسم په رب فتحمندی

هزار هزار عالمه کرم والله په در دیار لوګے
د عاشقانو صف کښے یم د محبوب داسے مقتدی

د عاشقانو په مذهب د عاشقانو په مشرب
د زړهٔ په کور کښے م نصیب عاشقئ شه آبادی

هزار هزار فردوسه به وانه خلمه والله
دیار د زلفو تر حلقے د یو ساعت په آزادی

هزار هزار تاج وتختونه به لوګے کړی په قسم
خوار محمدؐ امینؒ د عشق تریو لمحے بهرمندی

## (دیر بهترین محبوبه)

والله دواړه کونه هزار ځل درنه زار کړم. سبحان الله که ستا په ښکلی دوران داسینوا خوار پیدا وے. نو هزار هزار ځل به ې روزانه په در لوګے کیدو. ایمانًا واحتسابًا. ماشاء الله لاقوة الا بالله



ستا وسیله نصیب شه. او ته د عاشقانو نصیب شے. آمین

دل وجان م دواړه قربان د محمدؐ
په روح او په زړه م ارمان د محمدؐ

د دواړو جهانو آبرو عزت ونه
صدقه ده د پاک مخ روښان د محمدؐ

هر خم کښے ې د جمله خوبانو جمال دے
لړی دومره تدی زلفان د محمدؐ

والله دواړه کونه هزار ځل تر زای کړم
دے دومره پیا خاطر ګران د محمدؐ

لوګے ې په دروے هردم صد هزار ځل
پیدا وے په ښکلی دوران د محمدؐ

ستایلے چه رب العزة په قرآن دے
نصیب شه دا عزت او شان د محمدؐ

جمله عاشقان به ې لوګے شی په در کښے
که پورته په ناز شی چشمان د محمدؐ

محمدؐ امینه، الله دې نصیب کړه
په مخ د محمدؐ بیان د محمدؐ

## دیر نازنین محبوبه

نه چه کوم عشق د خپل رب العزة جل جلالهٗ سره لرے په دریاب د خمار د هغه کښے به هزاران عرش .. قسم دے چه غرق شی. نو ستا د دے عشق په شرافت مو ستا په حرم کښے بلکه په کل جوندون کښے د

جهل نصیب شه چه ستا عشق سره بناێی. لاحول ولا قوة الا بالله. آمین

حرم دَ محمدؐ محبوب مِ یادیگی — زړګے مِ خوګیږی زړګے مِ غوسیګی
نسیم الله مدینے لره وړی شه — محبوب ته مِ وایه چه نور نه صبریګی
ته هلته زه دلته دا څنګه جوند وُن دے — په خوار بینوا بے لتا چه تیریګی
دَ زړه ګلستان مِ الله پرِ سیراب کړے — دا اُوخوباران چه په مخ مِ وریګی،
رضوانه راپورته کړه سر تماشے ته — خواران عاشقان خپل محبوب ته جړیګی،
دریاب دَ خمار کښے دعشق دَ محبوب مِ — عرشونه هزاران قسم دے غرقیګی،
حیانه دِ زارشم راپورته چشمان کړه — جمله عاشقان دِ په دی قربانیګی،

الله دِ نصیب کړه محمدؐ امینه
دا څکلے محبوب چه عالم تړِ زاریګی

## وسیله دِ نصیب شه محبوبه

په هرے ساه مِ که دَ جمله عالم روحونه شی. قسم دے چه په دَر مبارک به دِ ئے لوګے لوګے کړم. دَ رب العزة جل جلاله وعم نواله دَ لوئے علم په شمار دِ پتا په هزار هزار تعظیمونو ادبونو هغه صلاة وسلام وی. چه رب العزة جل جلاله سره خائی. آمین

دل وجان دواړه مِ قربان په محمدؐ رسول الله
نصیب مِ کړے ربه ایمان په محمدؐ رسول الله
که مِ په هر نفس روحونه شی دَ جمله عالم
لوګے به ئے کړم قسم هر آن په محمدؐ رسول الله

دَ دواړو کونو ابروئی. دَ دواړو کونو خوبروئی



الحمد لله تعالیٰ چه دا اوت پخپله په رضا لیکنه کی متصل پنځه مبارک ورځے پوره کړے عرض کیدے شی ما شاء الله لاحول ولا قوة



شته په دربار عالیشان دَ محمدؐ رسول الله
نصیب دِ رب کړی دا عزت او شرافت او جلالت
چه شو نازل دَ رب قران په محمدؐ رسول الله
دَ رب دَ لوئے علم په شمار په ډیر تعظیم ادب وقار
صلاة سلام دِ وی شان شان په محمدؐ رسول الله
هزار عرشونه به ئے ورک شی په دریاب دَ عاشقئے
دومره شوق وعشق احسان په محمدؐ رسول الله
رب العزة محمد امین حساب کړے په احسان
چه حسابیګی عاشقان په محمدؐ رسول الله

## خپله زیبا محبوبه

صد هزار هزار عرشونه ستا دَ فیض له دریابه یوه قطره ده او خپله محبوبه په ما دِ دومره قدر دے. چه بے اجازته به دِ دَ سپوږه قطار کښے او نهٔ دریږم. په ما دومره ګران ئے. چه دَ در خاورے دِ راته له عرشه پورته دی. دَ عاشقانو نصیب شے. آمین

یم ګدائے ګدایان دَ محمدؐ
یم غلامِ غلامان دَ محمدؐ

دواړه کونه که مِ زر وار دے فتر شی — والله کړم به ئے قربان دَ محمدؐ
چه هر خم کښے ئے دی هزار فردوسه — دی دا هسے ګیسوان دَ محمدؐ
ملائک مقربان ئے خدمتګار دی — جبرائیل عندے دربان دَ محمدؐ
اشرف الانبیا فخرِ دو عالم دے — ډیر عالی کړلو رب شان دَ محمدؐ
آبروئی دَ دواړو کونو دَ خوبانو — برګِ ګل دَ ګلستان دَ محمدؐ

سمندُ هزار هزار عرشونه یو قطره ده    له دریا به دَ فیضان دَ محمدؐ
نه بخښنے به ئے په خیل دَ سپو ګڼم شم    دومره یمه قدر دان دَ محمدؐ
تر دَ خاورے ئے بما له عرشه پورته    بما هسے قدر ګران دَ محمدؐ
دَ رب العزة دَ علم په لوئے شمار    تل درود په مخ روښان دَ محمدؐ

محمد امینؐ په مخ د محمدؐ پاک
لرے ربه نعت خوان د محمدؐ

## محبوب کریما

که په شمیر دَ ذرو دَ کائنات کبریائی م روحونه شی. دَ رب العزة جل جلالهٗ وعم نواله په شمار دِ همیشه هره لمحه لتانه زار وی جمله سوالونه او تمنا او تصور ارشاد م دِ ستا په ډیر ښکلی مخ رب العزة جل جلالهٗ وعم نواله قبول کړی. آمین

پاک دلبرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
دَ زړه سرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

دَ دا دینو کل خوبان به کړم قربان    دَ محبوب په در قسم په پاک سبحان
هم دغه م عقیده دغه ایمان    پاک رهبرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
دَ جنت تر نعمتونو خوشحالیږم    چه په خاورو دَ دربار ئے قربانیږم
زه له صدق وله ایمان هسے وییم    پیغمبرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
دَ عدم تیاره ئے شوه په مخ روښانه    دومره ډیر عزت ئے موندے له سبحانه
دَ مولا په در بخقه له هر چا نه    معتبرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
دَ مخ نور ئے د جمله تیرو سراج دے    دَ جمله وو مرسلانو دَ سر تاج دے
چه ئے شپه خاص په لامکان معراج دے    مخ انورم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے



یو حلقه کښے ئے د زلفانو په قسم    صد هزار هزار فردوس خوش خرم
دی پراته زه ئے په هزار صدقه منم    ډیر بهترم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
که روحونه م ذرے دَ کائنات شی    زار دِ تر دَ رب دعلم په کرات شی
په پاک مخ م دِ ئے قبول جمله سوالات شی    مخه ورم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
خومره زړونو چه دَ ده په محبت    دے مونده لے ذوق وشوق درد ولذت
شه نصیب ئے دغه جمله شرافت    ناز پرورم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
صد هزار هزار فردوسه به قربان    کرم دَ ده په در قسم په پاک سبحان
ایمانًا احتسابًا په زړه کښے ګران    دا قدرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
مرسلان چه په لرزان شی په قیامت    دے به کاندے دَ عاصیانو شفاعت
هسے ګران په پاک خاوند رب العزة    په محشرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے
خوار محمد امین کړی هسے اقرار    درب العزة دَ لوئے علم په شمار
په زړګی م په هزار ادب وقار    جلوه ګرم پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

## رءوف الرحیم محبوبه

ستا دَ حرم محترم څنګ چه جوندے په خپلو خپو را بهر شوم. نو دَ فدایانو په محفل کښے ډیر خجل او شرمنده شوم. ډیر خپله محبوبه دا خو اختیاری امر نهٔ وه. ورنه والله چه هزاران فردوسه ستا دَ حرم نه لوګے کړم. او که جمله ذرے دَ کائنات م روحونه شی هم در قربان شه. آمین

افسوس ارمان چه بیا له تا شوم را جدا محبوبه
لکه یتیم کړم په سلګو سلګو ژړا محبوبه
په ړوندو سترګو وستوم کتل په صد ارمان او حسرت
چه دَ هجران له لاسه شوم په زړه تالا محبوبه

ستا دَ حرم نه چه ژوندے په خپلو خپو باهر شو
دَ قد ایانو په محفل کښے شوم رسوا محبوبه

نهٔ دِ له وصله شوم فنا نهٔ له هجرانه ځنے
ستړگے مِ خکته ملامته دیر په دا محبوبه

اختیار مِ نه وو ورنه ستا دمخ په نُور مِ قسم
دیر زیات مِ خوخ ئے په توفیق دَ خپل مولا محبوبه

د کائنات جمله ذرے که شی روحونه ځما
لوگے کوم به ئے په دربار ستا کښے بیا بیا محبوبه

ستا دَ حرم نه هزاران فردوسه ذار کړم والله
دَ مدینے منورے پاک مصطفیٰ محبوبه

په مهمانئے کښے به دَ ذرہ تیکے وریتے کړم درله
که مِ په سترگو قدم گدے بهرِ خدا محبوبه

دَ محمدؐ امین محبوبه محمدؐ عربی
دوارہ جهانه کړم لوگے په در کښے ستا محبوبه

## وجه الجمیل محبوبه

هره لحظه او هران دَ ازل نه تر ابده دَ پاک رب العزة جل جلالهٗ وعمّ نوالهٗ دَ علم په لوئے شمارِ دِ پتا هغه درود او سلام وی. چه لتا سره خائی وسیله دِ نصیب شه. والله دَ ذره تیکے ستا مهمانئے کښے وریتے کړم. ماشاء الله لا قوة الا بالله۔

| | |
|---|---|
| هر لحظه وهران علیک صلی الله | محبوبه دَ سبحان علیک صلی الله |
| دَ پاک رب العزة دَ علم په کرت | په صدق و په ایمان علیک صلی الله |



| | |
|---|---|
| هغه درود سلام. په صد عزت اکرام | چه خائی ستا له شان علیک صلی الله |
| سردار دَ مرسلانو. رو ئیدار دَ مرسلانو | صاحب ئے دَ قران علیک صلی الله |
| روحونه دَ عالم. که شی ځما قسم | لتا به ئے کړم قربان علیک صلی الله |
| یو تار کښے دَ زلفانو. جمال دَ کل خوبانو | لرے دائم ایمان علیک صلی الله |
| دَ خوگ زړگی تیکے به. والله کړمه وریتے به | که رب مِ کړے مهمان علیک صلی الله |
| ازل نه ستا گدایم. په پاک مخ دِ شیدایم | دَ پاک رب په احسان علیک صلی الله |

محمدؐ امین خوار له صدقه هزار بار
گویا دے په شان شان علیک صلی الله

## خپله خاوند رب العزة

هزار هزار عالمونه په یو کُن پیدا کولے او فنا کولے شئے. په هرے یوے ذرے کښے دِ صد هزار جلوے دی. د جمله عالم نیکئے به مِ بے ستا له فضله کافی نه شی. او دَ جمله عالم بدئ به ستا له فضله سره عفوه شی. آمین

| | |
|---|---|
| خاص تا له ره لوئی ده عزت او جلالت | ځما عجز و زاری ده عصیان او نجالت |
| دکل عالم خاونده خدائی نه دِ لوگے شم | دَ علم په مقدار ستا تا روزِ قیامت |
| په هره یو لمحه کښے په هره یو لحظه کښے | په دیر عجز ادب او حیا او محبت |
| ته هغه ئے چه ته ئے زه هغه یم چه زه یم | قسم په رب چه تا ته معلوم کل حقیقت |
| هزار هزار عالم په یو کُن به پیدا کړے | په یو کُن به ئے فنا کړے لرے عجب قدرت |
| په هره یو ذره کښے ستا صد هزار جلوے دی | هیځ شے دِ خالی نه دے خاونده له حکمت |
| پتام دِ قسم وی چه دا جمله هم ته ئے | که خکته دی که پورته دا جملگی خلقت |
| دکل عالم نیکئے که ځما په هر نفس شی | بے ستا له فضله وی به پرے ما ته نجالت |
| دکل عالم بدئ که ځما په هر ساه شی | چه ستا فضل په ما وی شی ځائے به مِ جنت |

محمد امین خوار شو که نالایق دے
ته عفوه ورته اوکړے پر پاک نخ دحضرت

## ظرف التکحیل محبوبه

درب العزة جل جلاله وعم نواله دلوئے علم په شمار دِ له ازل ترابده لمحه لمحه کښے په ډیر تعظیم او ادب او حیا په تا او په جمله آل ستا، او په جمله پیغمبرانو پاک هم صلاة و سلام وی. چه رب العزة جل جلاله پرے رضا کیږی. آمین

عربی زیبا دلدار ه الصلاة والسلام
ډیر په درد رب روئدار ه الصلاة والسلام
دواړه کونه رب روخانه. ستا له مخه کړه جانانه
والضحیٰ زیبا رخسار ه الصلاة والسلام
عربی وجه الجمیله. محبوب درب الجلیله
شم لوګے ستاله پا تزاره الصلاة والسلام
جبرائیل غوندے نامدار. ستا دردِ خدمتګار
محترم عالی وقار ه الصلاة والسلام
مقدس کښے مرسلان. تا پسے شو مقتدیان
د جمله عالم مختار ه الصلاة والسلام
دومره ډیر شوے محترم. چه دِ کیخودو قدم
آن په عرش باندے نامداره صلاة والسلام
دلوئے علم د پاک رب. په مقدار په ډیر ادب
په ډیر ذوق وشوق بار باره الصلاة والسلام



عرش نورهم شو محترم. په شرف ستا د قدم
هزار واره هزار واره. الصلاة والسلام
په خلوت د لامکان شوے واصل د پاک سبحان
محترم نور الابصاره الصلاة والسلام
محمد امین فقیر. کړی په فخر دا تقریر
اے حما دزړه قراره الصلاة والسلام

## ډیر پیما کړان محبوبه

زخمی زړونه مو ډک له ارمانونو بیا ستا د حرم نه داوړه- محبوب اختیار نه لرم. ورنه هزار هزار فردوسه به والله ستا د حرم محترم ځنے زار کړم. بیا مو ستا په وجه الکریم نصیب شه آمین آمین

افسوس ارمان چه را جدا شو بیا له تا محبوبه
روحی فدا روحی فدا محبوبه
زخمی زخمی زړونه مو ډک له ارمانونو داوړه
لکه یتیم کړم په سلګو سلګو ژړا محبوبه
ستا د حرم محترم بنګلے دورم ډیر یاد یږی
بیائے هم ستا په مخ کوم سوال له مولا محبوبه
بیا دِ یو ځل خاورے د در حما د سر تاج شولے
بوجهک الکریم اشرف الانبیا محبوبه
والله هزار هزار فردوسه به لوګے کړم ترنه
دومره م ډیر خوږ دے ډیر بنګلے حرم ستا محبوبه

ستا دَ دربار دَ کوسے خاورے ماتہ عرش نہ پورہ تہ

ستا لہ خاطرہ پاک محمدؐ مصطفیٰ محبوبہ

رب مونصیب کڑہ ستا پہ ښکلی مخ دیرزیات محترم

ستا پہ حضور کښے بیا جڑل لہ شوقہ ستا محبوبہ

دَ محمدؐ امین محبوبہ محمدؐ عربی

للّٰہ پہ لعلو لبو اوکڑہ پُرسان بیا محبوبہ

---

## مُسلمانہ رورہ

رب العزۃ جل جلالہٗ دِ خپلہ بندگی دَ خپلے رضا دَپارہ نصیب کڑہ۔ لہ کلو بدو توبہ کڑہ۔ آمین

---

بندہ کُئے لہ پیدا شوے ئے بندہ شہ

پہ کُل بدو توبہ کاہ او شرمندہ شہ

رب ویلی دی پاک صاف پہ عبادت شہ

ھسے نہ چہ پہ گناہ باندے گندہ شہ

دَ گناہ پلیت بد بو دریاب کښے مہ مرہ

دَ طاعت آبِ حیات باندے زندہ شہ

پہ رنړا ورز پہ رنړو سترگو نۂ گورے

صد افسوس دِ پہ دا سترگو نا دیدہ شہ

چہ حلال حرام یو ځائے دوارہ رانغاړے

صد افسوس پہ ھسے شانِ کیږہ[1] بندہ شہ

بے لہ خدایہ دِ سر ټیټ مشہ بل چا تہ

[1] شان خبیث ۱۲



بس پہ دردَیو خاوند خپل درماندہ شہ

گیرہ خریلے ناروا مخ دِ رب مکڑہ

دَ ایمان نور پہ تندی کښے تابندہ شہ

دَ کفارو علم پریدہ مخ دِ ئے ورک شی

پہ اخلاص دَ دین دَ علم خوانندہ شہ

دَ گناہ پہ لوری مہ زہ سفر مہ کڑہ

پہ خدمت دَ دین پہ ھرخوا گرزندہ شہ

یا اللہ دَ محمدؐ امینؐ دا سوال دے

پہ ایمان دَ ھر مُسلم زړہ رخشندہ شہ

---

## ډیر مهربان محبوبہ

دَ مدینے منورے فدایان عاشقان دِ استقبال تہ راوتلی دی دَ مغو پاکو فدایانو پہ شرافت زمونږ هم نصیب شے. دَ مکے شریفے جاهلانو پہ سرونو خاورے پریدہ. او دَ صدیقؓ سرہ تشریف راوړہ۔

---

اوسؔ وخزرج دَ مدینے ډک لہ شوق وادبا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

ستا دَ راتلو انتظار کړی اے دَ مولا محبوبا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

مشرکین بد بختہ دَ مکے نصیب خراب لری

ستا دَ پاک وجود دَپارہ نیت چہ دَ عذاب لری

تا بہ ترے پہ خیر سلامت خپل خاوند وھاب لری

سہ اوس وخزرج دَ مدینے منورے دوہ قبیلے دی ۱۲

شه ترے رابهر خاورے په سر به دوئ شی په صبا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

تا به رب صدیق رضه سره امان دَ ثور به غار کړی
ستا دیدن به هلته کښے مولا نصیب دَ مار کړی

دو لس سوه کاله پس به ئے رب نصیب دیدار کړی
جوړه به کړے ښکلے مدینه له هغه یثرب ا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

لار کښے (سُراقه) له امان ورکړه که ئے بد کړی
بیا دِ احسانونه کور کښے دَ اُمِ مَعْبَدْ کړی

بنه دِ بریده بن حصیب سره بے حد کړی
بیا به جوړه وے په مدینے کښے مسجد دَ قبا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

لوئے واړه ولاړ دَ مدینے منورے دی نن
سترګے ئے له عشقه ستا دَ اوښو فوارے دی نن

چغے دَ عشاقو دِ دَ عرش په منارے دی نن
ډک له شوقه ډک له ذوقه جمله وائی دلربا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

کیده دَ احسان قدم دَ زړه او روح په کور زمونږ
بے لتا په دواړو کړو نشته مقصد نور زمونږ

ستا دَ خیر به خاورو شه لوګے دَ سترګو تور زمونږ
دی ورے ورے بچے ګویا دَ شوق له مکتبا



مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

اَشْرَقَ الْبَدْرُ عَلَیْنَا مِنْ ثَنِیَّاتِ الْوِدَاعِ
وَجَبَ الشُّکْرُ عَلَیْنَا مَا دَعَا لِلّٰهِ دَاعِ

اَیُّهَا الْمَبْعُوْثُ فِیْنَا جِئْتَ بِالْاَمْرِ الْمُطَاعِ
اے رسوله اے حبیب راغلے مونږ ته له ربا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

ستا وفا هم داکول چه ستا عشاق ملال نهٔ شی
ته که ځان دَ یو کړے نور له دے غمه خلاف نهٔ شی

هیڅوک دِ له هجره ستا لتا ځنے بیا مال نهٔ شی
اے دَ مدینے منورے نبی بو العجبا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

دا دَ محمدؐ امین ویل دَ عاشقئے رب به
پټ دروں دَ زړه په خون جرل دَ عاشقئے رب به

ته په خپل دربار قبول کړے تل دَ عاشقئے رب به
ښکلے بخره ئے کړے نصیب دَ ښکلی عشق له منسبا

مرحبا صد مرحبا صد مرحبا صد مرحبا

## ډیر بهترین محبوبه

روحی فداک که په هر نفس رم سل زره روحونه شی نو ستا په دردِ خاورے اوکړدونه شی۔ ځما دا ایمان او باور دَ عاشقانو کار دے۔ که زره ځله حلال شم خو قسم دے چه تا به یوه لحظه په خپل اختیار ملال نکړم۔ (سبحان الله)

پاک نبی سرور ځما. شاه د مرسلانو دے
ډیر ښکلے دلبر ځما. فخر د خوبانو دے

دواړه جهانونه رب کړه پیدا په مخ د ده
ښکلی عالمونه رب کړه شیدا په مخ د ده
ترهمه بهتر ځما. نور م د چشمانو دے
پاک نبی سرور ځما. شاه د مرسلانو دے

که په هر نفس ځما سل زره روحونه شی
داد د جانان په درخاوړے اوګردونه شی
بس دغه باور ځما. کار د عاشقانو دے
پاک نبی سرور ځما. شاه د مرسلانو دے

غوښے م د زړه وریتے شوے په مسالو د عشق
زیات زه له مجنونه یم مست په زلزلو د عشق
دلبر انور ځما. شاه د محبوبانو دے
ډیر ښکلے دلبر ځما. فخر د خوبانو دے

مخ د غماز ورک د شی دربه د یار پرېندم
خوړم قسم چه یو قدم بل طرف به کېندم
درد یار ګنډر ځما. بس په دوو جهانو دے
پاک نبی سرور ځما. شاه د مرسلانو دے

زړه ځله که شم حلال. خوړم قسم په ذوالجلال
نه به کړم یوه لحظه ښکلے دلربا ملال
روح و تن جګر ځما. بس د دلبرانو دے



ډیر ښکلے دلبر ځما. فخر د خوبانو دے

سل زره فردوسه به کړم لوګے په درد یار
دا ایمان باور لرم زه د عاشقئ په لار
دا ښکلے هنر ځما. رنګ د فدایانو دے
پاک نبی سرور ځما. شاه د مرسلانو دے

داد محمد امین خوار د عاشقئ ویل
صدق وله ایمانه دی داد صادقئ ویل
پاک غنی اکبر ځما. مل د صادقانو دے
ډیر ښکلے دلبر ځما. فخر د خوبانو دے

---

## ډیر نازنین محبوبه

که دواړه جهانه م زړ وارے دفتر شی. ستا د هجران غم به رانه کم نکړی. ځما هم ته نصیب شے. او که په هر نفس م سل زره روحونه شی. ستا په در د لوګے او ګردونه شی. ستا د قربانئ ادب م خپل رب العزة ته سپارلے دے.

---

دے دغه بیان ځما. زه محمدی یمه — زه محمدی یمه زه محمدی یمه
حق دغه بیان ځما. زه محمدی یمه — زه محمدی یمه. زه محمدی یمه

زړ وارے دفتر م که، دواړه جهانونه شی
کله به لمانه دوړ، د هجران غمونه شی
خپل حبیب ارمان ځما. زه محمدی یمه
زه محمدی یمه. زه محمدی یمه

دے دغه ایمان ځما زه محمدیؐ یمه

که په هر نفس م د کل عالم روحونه شی
دا دِ د محبوب په درخاورے اوګرځونه شی
دا د مینے شان ځما - زه محمدیؐ یمه
زه محمدیؐ یمه - زه محمدیؐ یمه
دے دغه ایمان ځما زه محمدی یمه

سل زره فردوسه به کرم په درد یار نثار
دغه م ایمان قسم دغه م باور اقرار
دا د زړه درمان ځما - زه محمدیؐ یمه
زه محمدیؐ یمه - زه محمدیؐ یمه
دے دغه ایمان ځما زه محمدیؐ یمه

سل زره فردوسه ئے هر خم د زلفانو کښے
دی منلی ما اول خیل[1] د عاشقانو کښے
دا بیان عیان ځما - زه محمدیؐ یمه
زه محمدیؐ یمه - زه محمدیؐ یمه
دے دغه ایمان ځما زه محمدیؐ یمه

ما د قربانئ ادب خیل رب ته سپارلے دے
نور دغه بیان ځما فکر نه وتلے دے
نور نشته هیڅ توان ځما - زه محمدیؐ یمه
زه محمدیؐ یمه - زه محمدیؐ یمه
دے دغه ایمان ځما زه محمدی یمه

[1] خیل معنیٰ - محفل - یا ډله - ۱۲



خنک چه د رب خوښه وی د غم شان ترے زار دِ یم
زار دِ هم د ده د ډیر لوئے علم به شمار دِ یم
نشته بل سامان ځما - زه محمدیؐ یمه
زه محمدیؐ یمه - زه محمدیؐ یمه
دے دغه ایمان ځما زه محمدیؐ یمه

دا د محمد امین خوار د صداقت دلیل   خیل رب کړے قبول دا د محبت وسیل
کړے نصیب احسان ځما - زه محمدیؐ یمه
زه محمدیؐ یمه - زه محمدیؐ یمه
دے دغه ایمان ځما - زه محمدیؐ یمه

---

## محبوبه وسیله دِ نصیب شه

د مرسلانو د جرګے ډیر محترم او صدر العلیٰ محبوبه د رب العزة جل جلالهٗ دیدار دِ په لامکان نصیب شه.

او په شرافت او عزت د وصال ستا ځمونږ ستا په وسیله ستا عشق و محبت د باره د رضا او لقا د رب العزة جل جلاله نصیب شه. آمین

---

محبوب ځما دے محمدؐ رسول الله عربی
ګران به مولا دے محمدؐ رسول الله عربی
د مرسلانو د جرګے او د محفل محترم
صدر العلیٰ دے محمدؐ رسول الله عربی
چه مقرب ملائکان ئے خدمتګاردی د در
شاهِ والا دے محمدؐ رسول الله عربی

دوا ړه جهانه ئې روښانه دی دَ مخ په رڼړا
شمس الضحیٰ دے محمدؐ رسول الله عربی

نیاره دَ کُفر ئې رڼړا کړه دَ قرآن په مشعل
نور الهدیٰ دے محمدؐ رسول الله عربی

دَ عرش نه ډیر پورته خیژلے دَ الله دیدار له
شبِ اسریٰ دے محمدؐ رسول الله عربی

هزار فردوسه ئې کړم دَ یو ویښته له سره قربان
ډیر ګران یما دے محمدؐ رسول الله عربی

دَ محمدؐ امین محبوب دَ رب دَ علم په شمار
والله حقا دے محمدؐ رسول الله عربی

---

## رحلت فداک محبوبه

دَ وصال نه اول م غم د هجران جړلے وو. افسوس چه چوندی ستا دَ حرم ځنې فدایان راته رخصتیګی. مناسب خونږ دے دا چوند لیکن محبوبه دَ رب العزة جل جلاله تقدیر دغسے دے. نور رضا مو په قضا نصیب شه. اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ ٥

---

چغ دَ عُشّاقو ستا دَ عرش په منارو دی نن
اخلی رخصتونه په ژړا او په نعرو دی نن

رب دَ یاره پورته کړه محبوبه دَ حیا چشمان
زړونه دَ عُشّاقو غُس دَ هجر په اورو دی نن

یائې دَ وصال په ګلستان کښې ګل چینی کړله



یا دِ له هجران ځنې کړیان په سترګو سرو دی نن

نن دَ مدینې منورې نه عاشقان خواران
اخلی رخصتونه ګیډ دَ هجر په تیرو دی نن

نن ستا دَ حرم نه زائران په صد هزار حسرت
روستو روستو ګوری قدمونه ئې رورو دی نن

نهٔ دِ دَ وصال په ورز فناله خوشحالئې نه شو
نهٔ دِ دَ هجران په ورز لائق دَ مقبرو دی نن

مری سلګئې وهی عاشقان رب دَ یاره شه نما
ډیر مشتاق جُمله خواران دَ وصل په دارو دی نن

پاک رب العزة محمد امین واصل کړے بیا
تا ته ئې سوالونه ستا دَ علم په شمیرو دی نن

---

## دربار محبوبه

دَ عدم تیاره ستا په وجه الجمیل روښانه ده. اشرف الانبیاء او محبوب کبریا دَ زخمی زړونو دوا او شفا رب العزة جل جلاله وعم نواله دِ دَ عاشقانو نصیب کړه. آمین. ما شاء الله لا قوة الا بالله العلیّ العظیم.

---

پاک وجه الجمیل دلدار م پاک محمد مصطفیٰ دے
والضحیٰ زیبا رُخسار م پاک محمد مصطفیٰ دے

چه تیاره ئې دَ عدم شوه رڼا په مخ قسم
دغه مخ نور الانوار م پاک محمد مصطفیٰ دے

دَ جرگے دَ مرسلانو، معتبر په دواړو جهانو
دَ الله په لوئے دربار، پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

چه اشرف الانبیا دے، چه محبوب کبریا دے
محترم عالی وقار، پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

دَ همه عالم خوبان، دی دَ در ئے خادمان
دَ جمله عالم روښدار، پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

بینائی دَ خوږو زړونو، دوائی دَ خوږو زړونو
دَ زخمی زړونو قرار، پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

دومره دے دَ رب احسان پرے، چه نازل کړلو قرآن پرے
دَ جمله عالم مختار، پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

دَ ډیر لوئے علم په شمار، دَ خپل رب کوم اقرار
خپل محبوب نور الابصار، پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

زه محمدؐ امین خوار، کړم له صدقه دا گفتار
دَ جمله عالم سردار، پاک محمدؐ مصطفیٰ دے

## دَ رب پاک دَ علم په شمیر گوَل محبوبه

که په هرے ساه کښِ دَ جملهٔ عالم روحونه شی درګول محبوبه، دِ قربان محبوبه، در لوګے محبوبه، دَ ازل نه تر ابدؐ په لمحه لمحه کښے په شمار دَ علم دَ رب العزة جَلَّ جلاله، وعَمَّ نواله، وعَزَّ اسمه۔ آمین ثم آمین، ثم آمین،

نصیب کړے رب به دلدار دَ مدینے منورے
اشرف الانبیا سردار دَ مدینے منورے





که کښِ په هر نفس روحونه شی دَ جملګی عالم
لوګے او ګوَل په پاک دربار دَ مدینے منورے

هزار محشره به په یو غمزه قائم کړی په والله
ګران په رب دومره دے مختار دَ مدینے منورے

دَ رضوان جمله جنتونه په هزار نازو نعمت
یوه غُنچه ده دَ ګلزار دَ مدینے منورے

زړګیه ستړے لګوه په ستړګو خاورے بنګلوه
له شوقه تلل کوه په لار دَ مدینے منورے

دَ مرسلانو دَ محفل او دَ جرګے صدر العُلےٰ
اشرف الانبیا روښدار دَ مدینے منورے

خاونده ستا په لوئے احسان دَ محبوب جمله عاشقان
حرم ته بوزے په تلوار دَ مدینے منورے

دَ محمدؐ امینؒ اشعار، قبول کړے خدایه په دربار
نصیب ئے کړے په زړه انوار دَ مدینے منورے

## خپله زیبا محبوبه

دَ مور و پلار سر او سترګے صد هزار هزاد کړته ستا په دی لوګے کړم۔ په شپه دَ معراج دِ وصال دَ رب العزة جل جلاله نصیب شه دواړه کونه ستا دِ مخ په تجلو روښانه دی. دَ عاشقانو نصیب شے۔ آمین

بے حده ډیر دے په الله ګران محمدؐ مصطفیٰ
اشرف و اکرم نبی ذی شان محمدؐ مصطفیٰ
دواړه کونه شو رڼرا دَ مخ په تجلو دَ ده

ډیر ښکلے محبوب دے دَ سبحان محمدؐ مصطفیٰ
خلعتِ اَسْرٰی بِعَبْدِہٖ ورسره خوند کوی
دے دَ رب واصل په لامکان محمدؐ مصطفیٰ
والضحیٰ زیبا حَسین رُخسارے شه نصیب حُموږ ته
خورم قسم چه دے حُما جانان محمدؐ مصطفیٰ
دواړه جهانونه به نوکے ستا په دربار کړم
دغه م ایمان دغه ارمان محمدؐ مصطفیٰ
سر او سترګے صد هزار هزار کرت دَ مورو پلار
ستا په درلوګے کړم او قربان محمدؐ مصطفیٰ
غوږ به دَ ذره کړمه ورېتے په هزار ذوق شوق
دیناته کړے حُما مهمان محمدؐ مصطفیٰ
دا دَ محمدؐ امین اشعار دَ خپل مولا په در
شه قبول هم ستا په مخ روښان محمدؐ مصطفیٰ

## محبوب کریما

اشرف الانبیا او ختم الرسله دَ لولاک تاج دِ مبارک شه که دَ حیانه روغ سترګے دِ دَ محشر په میدان راوړوُلے. نو محشر به هزار هزار کرت په عاشقانو اختر شی. دَ عاشقانو دِ رب نصیب کړه آمین

| | |
|---|---|
| اشرف الانبیا ختم الرسل محبوب دَ اکبر | محمدؐ خیر البشر |
| شمس الضحیٰ بدر الدجیٰ نور الهدیٰ جلوه کر | محمدؐ خیر البشر |
| دواړه جهانه ئے روښانه شو دَ مخ په جمال | شه ئے نصیب دا کمال |
| ډیر محترم او مکرم تاج دَ لولاک په سر | محمدؐ خیر البشر |



| | |
|---|---|
| صف آرا مسجدِ اقصا دَ مرسلانو امام | صادِ ډیر احترام حب |
| مولا وصال لره بللے عرش نه ډیر پورته بر | محمدؐ خیر البشر |
| هر خم دَ زلفو کښے فردوسه هزاران هزاران | منی جمله عاشقان |
| دَ عاشقانو دِ نصیب شی دا ډیر ښکلے دلبر | محمدؐ خیر البشر |
| که له حیانه روغ سترګے ئے راواړے لے | په ډیر احسان یو ځلے |
| محشر به کړی په عاشقانو هزار واره اختر | محمدؐ خیر البشر |
| دَ محشر تکو مبارک مو شه هزار کرد | روئد ردکا عزت |
| دَ مزمل قبا په غاړه ذی په لوړ دَ کوثر | محمدؐ خیر البشر |
| رب العزة دِ کړه نصیب خوار محمدؐ امین ته | دَ محبوب ښکلے مینه |
| په شرافت هم دَ محبوب دَ ښکلی مخ منور | محمدؐ خیر البشر |

## اللهم ربنا الکریم العظیم

ازل نه ترابده خوږه حمد وثنا، ذکر، شکر، دعا، استغفار، ترجیع، انکسار، تدریس، وتعلیم، تالیف، وتصنیف، بلکه جمله اشغال نسبتونه له هره نیکه قسمه قولی فعلی تصوری ظاهری باطنی ستا درضا او لقا دپاره چه ستا جمله مخلوق عرض کړے دی. یا ئے عرض کوی. هغه دِ له اولے لیکے په خپل تعداد کښے ضرب وی. بیا دِ دویمه لیکه کښے ما حصل دَ اولے ضرب وی. دریمه کښے ما حصل دَ دریمے — دغسے دِ خاتمه شمیر جاری وی. ستا په توفیق او هدایت او احسان په وسیلے او توسط دَ محبوب کریم صلی الله علیه وسلم له عاجز عاصی محمدؐ امین او له جمله صاحبانو دَ دَه، او رونړو دَ بیعت او جماعت او اُخوت سره دَ جمله مسلمانانو عرض وی. ما شاء الله

لاقوة الا باللہ العلی العظیم لا الٰہ الا انت سبحانک انی کنت من الظّٰلمین و صلی اللہ علیٰ اشرف الانبیآء والمرسلین وعلیٰ آلہٖ واصحابہٖ اجمعین ○ سبحان ربک رب العزة عما یصفون ○ وسلام علی المرسلین ○ والحمد للہ رب العٰلمین ○

ازل نه تر ابده بیا لک الملک ولک الحمد
په شمیر د لوئے علم هم ستا لک الملک ولک الحمد

ازل نه تر ابد ستا جمله مخلوق ستا په توان توفیق
چه ستائی تا چه ستائی تا لک الملک ولک الحمد

په هر نسبت د ظاهر او د باطن په حیا تعظیم
په آدابونو د رضا لک الملک ولک الحمد

هره لمحه دِ کل تعداد په کل تعداد کښې مضروب
پیا پیا دِ وی دا سودا لک الملک ولک الحمد

څما ذره ذره په تصور ته د عالم زه یم عاجز
په اظهار نور د دے منشا لک الملک ولک الحمد

په وسیلے او شرافت د محمد رسول اللہ
وی دِ جاری دغه کیمیا لک الملک ولک الحمد

دا هم جمله ته د مولا په شمیر د علم ستا تل تل
قسم پتا قسم پتا لک الملک و لک الحمد

د محمد امین عاجز همه دوستان د هر نسبت
په احسان او بخښ مولا لک الملک ولک الحمد،

(رؤف الرحیم محبوبه) در نثار شم۔ د مخ نور دِ له عرش



پورته ان په لامکان رسیگی۔ صد هزار هزار عالمه والله ستا د زلفو تر یو تار قربان کړم۔ او که په هر نفس م د کل عالم روح ونه شی والله ستا په در به ئے لوگے کړم۔

در نثار شم در نثار پاک محمدﷺ ۔ د جمله عالم مختار پاک محمدﷺ
د عزت دو کا دِ د عرش په بام غږیگی ۔ قدسیان دِ په صلاة سلام وئیگی
د مخ نور دِ ان په لامکان رسیگی ۔ د جمله عالم روڼد پاک محمدﷺ
اشرف الانبیا ختم الرسل ته ئے ۔ محبوب کبریا هادی السبل ته ئے
جمله نور وضیا مشعل کل ته ئے ۔ محترم نور الانوار پاک محمدﷺ
مقرب ملائکان دِ خدمتگار دی ۔ عزتونه جملگی ستا په دربار دی
افلاکونه دِ له شوقه ناقرار دی ۔ اے صاحب د لوئے وقار پاک محمدﷺ
صد هزار هزار عالمه به قربان ۔ کړم والله زه هم د غه لرم ایمان
د رب العزة په لوئے کرم احسان ۔ ستا د زلفو تر یو تار پاک محمدﷺ
ستا د در خاورے بیا پورته له عرشه ۔ مراد و م جمله ستا په مخ سرشه
مور و پلار م لوگے زه څار ستا په درشه ۔ یو ځل نه په هزار وار پاک محمدﷺ
اے چه ایخے دِ په عرش پورته قدم دے ۔ دغه عرض م د مولا په دره هر دم دے
د زړه غوښے به و دیته کړم قسم دے ۔ که مهمان م شی یو وار پاک محمدﷺ
که په هر سا ه ارواح د کل عالم ۔ مولا راکړی په مولا غوړه قسم
ستا په در به ئے لوگے کړم دم په دم ۔ په ایمان باور اقرار پاک محمدﷺ

د محمد امین خوار عاجز ناتوان
ستا په شکلی مخ نصیب ئے کړه ایمان

په ممبر دِ د فردوس شی نعت خوان ۔ د عقبیٰ په شکلی دار پاک محمدﷺ

## وجه الجمیل محبوبه

اشرف المرسلین محبوبه، دواړه جهانه ستا په ښکلي مخ روښانه دي. حُما دلبراو نور البصر حقا چه هم ته يې. د رب العزة د علم په شمار م اقرار دے. چه تسلّه د ذره م هم ته يې. د جمله عاشقانو نصيب شے. آمين.

---

زيبا ښکلے دلبر م محمدؐ مصطفٰے دے — حقّا نور البصر م محمدؐ مصطفٰے دے
چه شو دواړه جهانه په ښکلي مخ روښانه — دا دومره جلوه گر م محمدؐ مصطفٰے دے
سيّد العلمين اشرف المرسلين — محبوب د پاک اکبر م محمدؐ مصطفٰے دے
د برائيل غندے نا مدار د رحمت کار — دا دومره معتبر م محمدؐ مصطفٰے دے
د پاره د وصال د پاک رب ذو الجلال — له عرشه تلے بر م محمدؐ مصطفٰے دے
سردار بهترين شفيع المذنبين — په ورځ د محشر م محمدؐ مصطفٰے دے
خبر د تشنګانو شي في الحال د را روان شي — په غاړه د کوثر م محمدؐ مصطفٰے دے
د پاک رب العزة د علم په کرت — اقرار کړم د ذره سر م محمدؐ مصطفٰے دے

**محمد امين** خوار - له صدقه کړي اقرار
مرهم د خوګ جګر م محمدؐ مصطفٰے دے

---

## طرف الکحيل محبوبه

نور الانوار محبوبه. د عدم تياره ستا په جمال رڼا ده. د مرسلانو محترم صدر العلٰي جمله شرافتونه ستا په دربار دي. په هر خم د زلفو کښ د زرګونو فردوسه پراته دي. د عاشقانو نصيب شے - آمين ثم آمين ثم آمين

---

ښکلے محبوب ښکلے دلدار م محمدؐ مصطفٰی
د ستر ګو نور د زړه قرار م محمدؐ مصطفٰی



چه د عدم تياره يې شوه رڼا د مخ په جمال
دغه محبوب نور الانوار م محمدؐ مصطفٰی

د مرسلانو د جرګے صدر العلٰی محترم
ډير معتبر عالي وقار م محمدؐ مصطفٰی

د دواړو کونو جمله شرافتونه عزت
جمله لري په خپل دربار م محمدؐ مصطفٰی

هزار فردوسه يې پراته دي په هر خم د زلفو
هسے محبوب هسے روښان م محمدؐ مصطفٰی

چه مرسلان شي په نفسي نفسي ګويا په محشر
په اُمّتي ښکلي ګفتار م محمدؐ مصطفٰی

د عاشقانو دِ نصيب شي په دُنيا و عقبٰی
ډير نوراني ښکلے رخسار م محمدؐ مصطفٰی

ما **محمد امين** له صدقه پرے ايمان راوړے
ښکلے محبوب نور الابصار م محمدؐ مصطفٰی

---

## ډير پيا کران محبوبه

اشرف الانبيا او محبوب کبريا محبوبه دواړه جهانه دِ په ښکلي مخ سارک روښانه دي. رب العزة دِ زما د زړه کور په هم روښانه لري. د کل خوبانو جمال دِ د زلفانو په هر خم کښے دے. وسيله دِ رب العزة جل جلاله وعم نواله نصيب کړه. آمين ثم آمين ثم آمين

---

اشرف الانبيا دے محبوب حُما محمدؐ
محبوب کبريا دے محبوب حُما محمدؐ

اشرف المرسلین - سردار بهترین
حضرت صدر العلیٰ دے محبوب ځما محمدؐ

چه د شو دواړه جهانه - په شکلی مخ روښانه
محبوب د پاک مولا دے محبوب ځما محمدؐ

د کل عالم خوبان - قربان شه ترے هر آن
دیر ښکلے دلربا دے محبوب ځما محمدؐ

په دواړو جهانونو - ترجمله مرادونو
ځما د زړه منشا دے محبوب ځما محمدؐ

هر خم کښے د زلفانو - جمال د کل خوبانو
دیر ښکلے محبوبا دے محبوب ځما محمدؐ

مختار د دواړو کونو - روښدار د دواړو کونو
حضرت نور الهدیٰ دے محبوب ځما محمدؐ

محمد امینؐ خوار - په فخر کړی اقرار
والله لیدلے ما دے محبوب ځما محمدؐ

## اللهم ربنا الکریم العظیم

دیر خیله رب العزته - د کرم دریاب د هسے پلن بهیری چه د کل عالم بخنه ترے بوادنے نم دے - یو ذرے د عنایت او احسان ستانه د جمله عالمونو طاعت کم دے - خیله رب العزته موږ جمله مسلمانان محض په خپل فضل و عنایت اوبخے - او جمله سوالونه زارئ د کل مخلوق د له دے عاجز بنده ستا هره لمحه ستا د علم په شمار تکرار و آمین

الله هسے لوے دریاب ستا د کرم دے — چه بخښش د کل عالم ترے ادنے نم دے



یو ذرے د عنایت ستا نه خاونده — د جمله وُو عالمونو طاعت کم دے
چه لتا سره خاني رب کریمه — هغه اوکړے زړه م غوس قلم قلم دے
د گناه په تیاره م دروند دے وړے نه شم — وار خطا یم په لغزش م هر قدم دے
که د کل عالم گناه ځما دفتر شی — دا دفتر م ستا کرم ته کالعدم دے
د همه عالم نیکئے بے ستاله فضله — جوړ سامان د بربادے و تود جهنم دے
په عزت او شرافت د ذات پاک خپل — موږ ته او بخے دا سوال مو په هر دم دے
د قران په لوئے عزت بخنه غواړو — که هر څو مو حال احوال درهم برهم دے

د محمدؐ مصطفیٰ په شرافت،،
عفوه غواړی محمد امین دیر کرم دے

## اللهم ربنا الرءوف الرحیم

دیره خیله رب العزته ستا د رضا او لقا سوال موستا د علم په مقدار په لمحه لمحه د ابد الابد کښے ستا په وجه الکریم دے. په عزت او شرافت د جمله اسماء حسنیٰ او صفاتو مبارکو ستا په ذرو او لطائفو ذراتو د کائنات کبریائی. آمین ثم آمین ثم آمین

رضا شے موږ نه مولا بوجهک الکرام — یا ربنا یا ربنا بوجهک الکریم
ستا په توفیق او هدایت ستا په احسان او اکرام — ستا د رضا او د لقا سوال مولا دے مدام
په شمار د علم ستا یا ربنا بوجهک الکریم — رضا شے موږ نه مولا بوجهک الکریم
خپله کریمه او قدیمه او صمد خاونده — لمحه لمحه کښے د ازل نه تر ابد خاونده
په دیر ادب په دا کښے ستا بوجهک الکریم — رضا شے موږ نه مولا بوجهک الکریم
یا ربنا یا ربنا یا ربنا یا ربنا — ستا د جمله پاکو صفاتو او اسماء حسنیٰ

په شرافت عزت حیا بو جهک الکریم      رضا شي موږ نه مولا بو جهک الکریم

ازل نه ستا په ذکر ولاړ وو بس هم تر اوسه مونږ      لتا نه غواړو تا ته جاړ وو بس هم تر اوسه مونږ

قسم پتا قسم پتا بو جهک الکریم      رضا شي موږ نه مولا بو جهک الکریم

امان مو کړې له هر ضرر او شره خپله مولا      موږ او مه شرمې له خپله دره خپله مولا

کړې مو قبوله کل دعا بو جهک الکریم      رضا شي موږ نه مولا بو جهک الکریم

موږ هغه کوو چه خاې له انسانه سره      تا نه هغه غواړو چه خاې ستا له شانه سره

خپله بنا وند کبریا بو جهک الکریم      رضا شي موږ نه مولا بو جهک الکریم

د جملګي پیغمبرانو په عزت او حرمت      ستا د جمله پاکو دوستانو په عزت او حرمت

زموږ نصیب کړې ستا لقا بو جهک الکریم      رضا شي موږ نه مولا بو جهک الکریم

د جمله نور و ضیا حضرت محمد مصطفیٰ      د اشرف الانبیا حضرت محمد مصطفیٰ

په شرافت عزت وفا بو جهک الکریم      رضا شي موږ نه مولا بو جهک الکریم

د محمد امین جمله تصورات و اشغال،      خپلې رضا لقا دپاره کړې قبول ئې هر سوال

خپله خاونده ذوالعلا بو جهک الکریم      رضا شي موږ نه مولا بو جهک الکریم

سبحان ربک رب العزة عما یصفون ٥ وسلام علی المرسلین ٥ والحمد لله رب العلمین ٥

## ډیر مهربان محبوبه

درب العزة جل جلاله په فضل وکرم د ازل نه ستا د مخ مبارک مینه نصیب شوې ده. د زړه مشعل مې په شمس وقمر فخر نه کوي چه ته پرې جلوه کړې. ستا د عشق له برکته به محشر کښې ما رب العزة جل جلالهٔ اختر کړي. آمین ثم آمین ثم آمین.

زه خپل زیبا دلبر محمد مصطفیٰ لرمه      نبي خیر البشر محمد مصطفیٰ لرمه

دواړه جهانه ئې روښانه دي د مخ په جمال      محبوب د رب اکبر محمد مصطفیٰ لرمه



مشعل د زړه مې په شمس و قمر کوي فخر و نه      په زړه چه جلوه کړ محمد مصطفیٰ لرمه

د خپل رب العزة په فضل ازلي قسمت کښې      مخ مبارک انور محمد مصطفیٰ لرمه

خوک به چرته کړي د محشر د لوې هیبت په ورځ      په ما به وي اختر محمد مصطفیٰ لرمه

د کل عالم په دولتونو مې پروا نشته دے      د کل عالم سرور محمد مصطفیٰ لرمه

په زړه مې خوږ د عاشقئ هزار زخمونه      مرهم د خوږ جګر محمد مصطفیٰ لرمه

د محمد امین اقرار درب د علم په شمار
په حقه پیغمبر محمد مصطفیٰ لرمه

## ډیر بهترین محبوبه

د ازل نه تر ابد په شمار د علم درب العزة جل جلالهٔ اقرار کړم چه ځما محبوب هم ته ئې. ستا د عشق په وجه مې د ازل نه جولئ د مراد ډکه داوړې ده. رب العزة مې مرهم د زړه بیمار هم وصال نصیب کړه. په جمال او شرافت هم ستا د مخ مبارک. آمین ثم آمین ثم آمین

ځما د زړه قرار محمد مصطفیٰ دے والله
ځما زیبا دلدار محمد مصطفیٰ دے والله
ازل نه تر ابد په شمار د پاک الله د علم
محبوب ځما بار بار محمد مصطفیٰ دے والله
ما د ازل نه جولئ ډکه د مراد راوړے
مراد مې په هر کردار محمد مصطفیٰ دے والله
ځما په دواړو جهانونو کښې مرادو مطلب
د کل عالم سردار محمد مصطفیٰ دے والله
روز ازل نه مې غوښتلے په هزار شوق و ذوق

دَ خدائے په لوئے دربار محمدؐ مصطفیٰ دے واللہ

دَ رب دَ لوئے علم په شمار دَ رب په لوئے فضل م
مرهم دَ زړه بیمار محمدؐ مصطفیٰ دے واللہ

چه په هر خم کښے دَ زلفانوئے شته هزار فردوسه
محبوب دَ دے رخسار محمدؐ مصطفیٰ دے واللہ

دَ محمدؐ امینؒ اقرار دَ رب دَ لوئے علم په شما
ځما محبوب او یار محمدؐ مصطفیٰ دے واللہ

## ډیر قدردان محبوبه

دواړه جهانه ستا په ښکلی مخ روښانه دی. للّٰه دَ حیانه رو غ مبارک چشمان را پورته کړه چه دَ دواړو جهانو مرادونه م سره دکل احبابو پوره شی. که در پسے دَ اوخوبه ځائے په وینو دا سے اوجاړم چه دریا بونه م روان شی. لیکن حق دَ هجران به دِ ادا نه شی. ماشاءالله تعالیٰ.

دواړه جهانه شو روښانه ستا دَ مخ په ضیا — پاک محمدؐ عربی
محبوب په حقه ئے د پاک رب العزة کبریا — پاک محمدؐ عربی
دواړه جهانه ستا په ښکلی مخ روښان محبوبه — ډیر بیا کران محبوبه
للّٰه را پورته کړه په ناز دواړه چشمان دَ حیا — پاک محمدؐ عربی
بے تا په دواړو کونو بل مراد مقصد نه لرم — په پاک مولا م قسم
په دواړو کونو م هم ته مراد مقصد ئے رښتیا — پاک محمدؐ عربی
حق به دَ عشق ستا ادا نه کړم په هیڅ شان محبوبه — زه در قربان محبوبه
که م له اوښکو نه روان شی دَ سرو وینو دریا — پاک محمدؐ عربی



دَ پاک رب العزة دَ لوئے علم په شمار دلبره — شمه در زار دلبره
دغه اقرار م دِ تکرار روی تر محشره بیا بیا — پاک محمدؐ عربی
هزار هزار هزار هزار هزار نعیمه واللہ — محبوب کریمه واللہ
جوړے به وا نخلمه ستا دعا شقئ په کیمیا — پاک محمدؐ عربی
دَ محمدؐ امین عاجز دَ عاشقئ اشعار — ستا دَ دیدار رخسار
رب صداقت نړه ګډ ام مه شه دروغ وریا — پاک محمدؐ عربی

## ډیر عالیشان محبوبه

ستا په ډیر روښانه مخ م خیل رب العزة جل جلاله وعم نواله ته ستا دَ وصال سوال دے. واللہ که م په هر نفس دَ کل عالم روحونه شی. چه ستا له شوقه ئے ستا په در لوئے لوګے او کړدونه کړدو للّٰه کړم. ذالک فضل اللہ یؤتیه من یشاء. ستا دَ خیبو دَ خاورو نه هزار هزار یعنے همیشه لوګے کیږه. او ځما دَ مینے سبب چه تا ته دے نو ځما له مینے هم هزار ان مجنون زار شه. ماشاءالله لاحول ولاقوة الا بالله العلی العظیم.

رب م نصیب کړه ستا دَ وصل دَ ګلشن ګلونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ
ستا په روښانه مخ کوم ستا دَ وصال سوالونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ
دواړه جهانه چه روښان شو ستا په ښکلی رخسا — جمله عالم شه نزار
ستا په دا ښکلی مخ م ډوب شه دَ هجران غمونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ
که م په هر نفس روحونه شی دَ جمله عالم — په خپل مولا م قسم
له شوقه ستا به ئے ستا په درګه مه لوګے کړدونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ
هزار هزار لیلا نثار ستا دَ دربار ترخاورو — ستا دیدار ترخاورو

ځماله مینې هم نثار شه صد هزار مجنونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ

روزِ ازل نه ستا دَ مینې په سودا راغلے — یمه فِدا راغلے

دَ عاشقئ نغمې م دی ځکه خواکه شعرونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ

که دَ حیا نه روغې سترګې کړے را پورته یو ځل — دَ ګدالو رته یو ځل

تا ته لوګے کړم دَ رضوان هزار هزار باغونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ

هزار فردوسه په مذهب دَ عاشقئ محبوبه — دَ صادقئ محبوبه

هر خم دَ زلفو کښې لرے والله له بنه مضمونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ

دَ محمدؐ امین محبوبه محمدؐ عربی — په حق محبوب ربی

الله تماشه دی نثار کړم دَ عالم روحونه — پاک محمدؐ مصطفیٰ

## روؤف الرحیم محبوبه

دَ مرسلانو دَ جرګے ډیره محترمه حضرت ته په شمیر دعلم دَ رب العزة جل جلاله دِ وصال دَ رب العزة جل جلالهٗ په لامکانؑ نصیب شه. ستا له شوقه او درده چه عاشقان جاری. نو دَ دواړو جهانونو نعمتونه ترے نثار شه. دَ خپل جمال په شرافت دَ خپلو عاشقانو نصیب شي. آمین ثم آمین ثم آمین

قربان یمه قربان دَ محمدؐ رسول الله — لرم په زړه ارمان دَ محمدؐ رسول الله

مختار دَ مرسلانو دَ جرګے ډیر محترم — نصیب شه دغه شان دَ محمدؐ رسول الله

په شمیر دَ رب دَ علم دِ بیا بیا وي مبارک — وصال په لامکان دَ محمدؐ رسول الله

روحونه دَ عالم که شي ځما په هر نفس — نثار دِ وي هر آن په محمدؐ رسول الله

هر خم کښې ئې هزار هزار فردوسته والله — دی دغسې زلفان دَ محمدؐ رسول الله

په حقه چه محبوب دے دَ خاوند رب العزة — نصیب شه دا احسان دَ محمدؐ رسول الله



دَ دواړو جهانونو لذتونه ترے نثار — جرګے کی عاشقان دَ محمدؐ رسول الله

الله دَ محمدؐ امین نصیب کوے ستا رضا — په ډیر ښکلی بیان دَ محمدؐ رسول الله

## روئداره محبوبه

والله هزار هزار عالمه به دِ له ښکلی پائزار د پښو مبارکو نه زار او قربان کړم. ته چه په میدان محشر دَ شفاعت کمربند تر ملا کړے او جلوه کر شے. نو هزار هزار اخترونه دَ دغه محشر نه زار او قربان شه. ماشاءالله لا قوة الا بالله العلی العظیم ؕ

والله ځما جانان دے محمدؐ رسول الله — بے حده پیاګران دے محمدؐ رسول الله

چه دواړه جهانونه ئې روښانه دي په مخ — داشان ماهِ تابان دے محمدؐ رسول الله

چه مثلِ جبرائیلؑ ئې کوی فخر په خدمت — سردارِ عالیشان دے محمدؐ رسول الله

په شمیر دَ رب دَ علم دِ ئې نصیب شي خپل جمال — محبوب دَ پاک سبحان دے محمدؐ رسول الله

هزار هزار عالمه ئې نثار کړم تر پائزاره — والله خوخ م داشان دے محمدؐ رسول الله

دَ رب دَ بے انداز علم په شمار کړمه اقرار — ځما دین و ایمان دے محمدؐ رسول الله

هزار هزار اختره دِ وي زار تر دا محشره — پکښې چه ماه تابان دے محمدؐ رسول الله

سیرابه به شي تګي دَ محشر آن تر ابد — کوثر ته راروان دے محمدؐ رسول الله

الله دَ محمدؐ امین به مخ د محمد صلی الله علیه وسلم

سوال تا ته په هر آن دے محمدؐ رسول الله
کما هو اهله و یحب و یرضی

## مختاره محبوبه

دَ مرسلانو محفل ډیر عزیز او شریف صدر العلیٰ دومره را باندے ګران ئې چه هزار هزار عالمه به دِ په در لوګے کړم. دَ رب العزة جل جلالهٗ دَ بے انداز علم په شمیر م تل اقرار او ایمان او باور دے. چه په حقه پیغمبر اشرف المرسلین ئې

محبوبه وسیله دِ نصیب شه. آمین.

والله ځما دلبر دے محمدؐ رسول الله — ترکل عالم بهتر دے محمدؐ رسول الله
اشرف الانبیا او ختم محبوبِ کبریا — والله خیر البشر دے محمدؐ رسول الله
مخفل دَ مرسلانو کښے په ډیر عزت شرف — صدر العلیٰ سرور دے محمدؐ رسول الله
هزار هزار عالم به ئے لوګے کړم په ډیر بار — بیا ګران دا قدر دے محمدؐ رسول الله
دیاره دَ وصال دَ خپل خاوندِ رب العزة — له عرشه تلے بر دے محمدؐ رسول الله
هر خم کښے دَ زلفانو ئے دَ خوبانو کل جمال — محبوب دَ رب اکبر دے محمدؐ رسول الله
دَ رب دَ بے اندازه علم په شمار م تل اقرار — په حقه پیغمبر دے محمدؐ رسول الله

الله دَ **محمدؐ امین** نصیب کړے خپل ایمان
په ذره ئے جلوه کړ دے محمدؐ رسول الله

## رو ئیل ارة محبوبه

دواړه جهانونه دِ په جمال روښانه دی. صد هزار فردوسه ستا دَ حُسن دَ ګلشن یوه غنچه ده. دَ خپل رب العزة جل جلاله په دربارِ دَ ده دَ علم په شمار ستا دَ وصال سوالونه دی. رب العزة دِ دَ جمله عاشقانو نصیب کړه. آمین ثم آمین ثم آمین.

زیبا ښکلے دلدار م محمدؐ عربی دے — دَ خوګ زړګی قرار م محمدؐ عربی دے
چه دواړه جهانونه ئے روښان دی په جمال — محبوب نور الانوار م محمدؐ عربی دے
جرګے دَ مرسلانو کښے والله صدر العلیٰ — صاحب دَ لوئے وقار م محمدؐ عربی دے
ملک مقربان ئے خادمان دی دَ دربار — دَ کل عالم سردار م محمدؐ عربی دے
هزار هزار عالمه ئے له مخه شه نثار — ډیر زیبات ښکلے رخسار م محمدؐ عربی دے
چه صد هزار فردوسه ئے ده یوه غنچه ادنے — صاحب دَ ګلزار م محمدؐ عربی دے



خاوند رب العزة ستا دَ علم په لوئے شمار — مطلب ستا په دربار م محمدؐ عربی دے

الله دَ **محمدؐ امین** نصیب کړے خپل ایمان
دَ کل عالم مختار م محمدؐ عربی دے

## ډیر پاکیزه محبوبه

دَ رب العزة جل جلالهٗ وعم نوالهٗ دَ علم په شمار دِ ستا صلاة او سلام وی. که ذرے دَ کائنات م روحونه شی. او هزار زر عالمونه م دفتر شی. قسم دے ستا په ذات چه جمله لوګے او نثار کړم. ماشاء الله لاحول ولا قوة الا بالله.

دَ رب دَ لوئے علم په شمار علیک صلی الله — په ډیر تعظیم دَ وقار علیک صلی الله
دَ رب دَ لوئے علم په شمار هره لمحه او لحظه — ازل نه تر ابد بار بار علیک صلی الله
که م ذرے دَ کائنات شی جمله روحونه — کړم به ئے لوګے ستا په دربار علیک صلی الله
چه دَ عدم تیاره دِ شوله په جمال روښانه — نصیب شه دَ غم انوار علیک صلی الله
دَ مرسلانو دَ جرګے صدر العلیٰ محبوبه — جمله عالم کړم در نثار علیک صلی الله
که م هزار هزار عالمه شی دفتر قسم دے — کړم به ئے فدا ستا له دیدار علیک صلی الله
رب دِ نصیب کړه وسیله په خپل جمال او حُسن — اے دَ جمله عالم مختار علیک صلی الله

دَ رب دَ لوئے علم په شمار له **محمدؐ امینه**
په ډیر تعظیم او انکسار علیک صلی الله

## محبوب کریمه

دَ رب العزة جلّ جلاله دَ علم په شمار دِ له ازل نه تر ابد صلاة او سلام ستا لمحه لمحه کښے وی. که جمله ذرے دَ کائنات کبریائی م په هر نفس

روحونه شي. په توفیق او احسان او هدایت د رب العزة جل جلا له

به ئې ستا په دربار په ایماني صداقت لوګې کړم. آمین

درب د لوئې علم په شمار پتا دِ وی سلام تل تل

په ډیر تعظیم ادب باربار پتا دِ وی سلام تل تل

د مرسلانو د جرګې ډیر محترم صدر العلی

جمله عالم کړمه درزار پتا دِ وی سلام تل تل

په خدمت ستا کوی فخرونه اے سرداره د عزت

د جبرائیلؑ غندے نامدار پتا دِ وی سلام تل تل

که مِ په هر نفس روحونه شي ذرے د کائنات

لوګے به ئې کړم ستا په دربار پتا دِ وی سلام تل تل

تاج د لولاک دِ مبارک شه په هزار هزار کرت

ته ئې د کل عالم سردار پتا دِ وی سلام تل تل

د رضوان جمله جنتونه په هزار هزار کرت

یوه غنچه ستا د ګلزار پتا دِ وی سلام تل تل

د عاشقانو دِ رب کړی نصیب په خپل فضل احسان

ستا نوراني بنکلے رخسار پتا دِ وی سلام تل تل

ستا د پاک مخ په شرافت قبول دِ کړی رب العزة

د محمد امینؒ اشعار پتا دِ وی سلام تل تل

## د رؤف الرحیم محبوبه

د جمله عالمونو جمله تعظیمونه دِ پتا قربان وی. ازل نه تر ابده

په ذوق وشوق تعظیم وادب دِ لمحه لمحه او طرفه طرفه کښې پتا



صلاة وسلام وی. ستا وسیله نصیب شه. او ته د عاشقانو نصیب شې.

آمین ثم آمین ثم آمین.

داستا په مخ روښان صلاة وسلام تل تل

اشرف المرسلینه. سردار بهترینه

په ډیر ادب تعظیم په شوق وذوق تکریم

د پاک رب العزة. د علم په کرت

د جمله عالمونو. په جمله تعظیمونو

د جمله عاشقانو. له جمله صادقانو

محبوبه د سبحان. صلاة وسلام تل تل

پتا او سه باران. صلاة وسلام تل تل

پتا او سه هزران. صلاة وسلام تل تل

پتا او سه شان شان صلاة وسلام تل تل

پتا دِ وی قربان. صلاة وسلام تل تل

د عشق په میزان. صلاة وسلام تل تل

محمد امین جاری. الله نه رضا غواړی

دائي له جسم وجان. صلاة وسلام تل تل

## ډیر بهترین محبوبه

پاکه او مختار او رو ئډ اره محمد مصطفیٰ قسم په رب العزة جل جلا له

چه حق الیقین پیغمبر ئې. ستا د رب العزة جل جلا له له طرفه عظیم

الشان احسان د قرآن نصیب شه. او مونږ پتا ایمان نصیب

شه. آمین. ثم آمین. ثم آمین.

ډیر زیبا بنکلے دلدار مِ پاک محمد مصطفیٰ دے

د زخمی زړګی قرار مِ پاک محمد مصطفیٰ دے

چه ور کړے رب قرآن دے. مونږ راوړے په ایمان دے

دغه محترم مختار مِ. پاک محمد مصطفیٰ دے

وسیله دِ ئې ذوالجلال. کړی نصیب په خپل جمال

د جمله عالم سردار مِ. پاک محمد مصطفیٰ دے

چه ئے مخ شمس الضحیٰ دے۔ چه ئے مخ بدر الدجیٰ دے
دغه دلبر نامدار م۔ پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے

چه مازاغ لری چشمان۔ هم والیل لری زلفان
دا محبوب دلوئے وقار م۔ پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے

دَجمله عالم رونړا دے۔ دَجمله عالم مختار دے
دَ الله پاک په دربار م۔ پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے

پیغمبر حق الیقین۔ ډیر بهتر حق الیقین
په ایمان او په اقرار م۔ پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے

دَ محمد امین خوار۔ شه قبول جمله گفتار دے
چه ستائیلے په بار بار م۔ پاک محمدﷺ مصطفیٰ دے

## ډیر نورانی محبوب دے

مُحمدﷺ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ عدم تیاره دِ په مخ رنړا شوه۔ په هر خم دَ زلفانو کښے دَ کل خوبانو جمال لرے وَ الله جل جلالهٗ دیدار رستیا په لامکان نصیب شه۔ او مونږ په وسیلے دَ جمله عزت ستا پیدا ایمان نصیب شه۔ آمین۔ ثم آمین ثم آمین

ډیر زیبا ښکلے جانان م محمدﷺ رسول الله دے
دَ الله په در ډیر گران م محمدﷺ رسول الله دے

چه تیاره ئے دعدم۔ شوه رنړا په مخ قسم
دا محبوب دَ پاک سبحان م محمدﷺ رسول الله دے

په هزار فخر و عزت، په هزار شان و شوکت
رب ستائیلے په قران م۔ محمدﷺ رسول الله دے



چه ئے مخ شمس الضحیٰ دے۔ چه ئے مخ بدر الدجیٰ دے
دغه ډیر ښکلے روښان م۔ محمدﷺ رسول الله دے

چه هر خم کښے ئے د زلفانو۔ شته جمال دَ کل خوبانو
بهترین شاهِ خوبان م۔ محمدﷺ رسول الله دے

عرش ته ډیر لوړ ته ختلے۔ دَ الله دیدار لے تلے
مشرف په لامکان م۔ محمدﷺ رسول الله دے

جنتونه هزاران۔ والله کړم ترِ نه قربانا
گران پیما په هسے شان م محمدﷺ رسول الله دے

محمد امینؒ فقیر۔ کړی په فخر دا تقریر
په والله دین و ایمان م محمدﷺ رسول الله دے

## ډیر لاثانی محبوبه

قسم په رب العزة جل جلالهٗ چه که سل هزاره عالمه ځما دفتر شی۔ چه ستا دَ در په خاورو به ئے دَ رب العزة جل جلالهٗ وعم نوالهٗ په توفیق او هدایت دَ ازل نه تر ابد په شمار دَ علم دَ رب العزة جل جلالهٗ نثار او قربان او لوگے کړم۔ آمین

ډیر زیبا ښکلے دلبر م محمدﷺ خیر البشر دے
گران دِ پاک الله په در م محمدﷺ خیر البشر دے

دَ جمله عالم خوبان۔ دی دَ در ئے خادمان
چه محبوب دَ پاک اکبر م۔ محمدﷺ خیر البشر دے

چه ورکړے رب قران دے۔ مونږ راوړے په ایمان دے
دا محققه پیغمبر م۔ محمدﷺ خیر البشر دے

چه اشرف المرسلين دے ـ چه سردار بهترين دے
دَ جمله عالم سرور م ـ محمدؐ خير البشر دے

شه نصيب ئے هزار واره ـ دَ الله دراز دَ يار ه
اَنُ له عرشه تلے بر م ـ محمدؐ خير البشر دے

عالمونه صد هزار ـ ترے لوگے کرم او نثار
دومره خوخ نور البصر م ـ محمدؐ خير البشر دے

خپل رهبر حق اليقين ـ پيغمبر حق اليقين
په ايمان او په باور م ـ محمدؐ خير البشر دے

**محمد امين** ناتوان ـ کړی له صدقه دا بيان
تسلّه دَ خوگ جگر م ـ محمدؐ خير البشر دے

---

بسم الله الرحمن الرحيم ډيره خپله کبريا رب العزته لک الحمد والشکر فی کل لمحةٍ و نَفَسٍ من الازل الے الابد عدد علمک وزنة کبريائک کما انت اهله وتحب وترضیٰ. دَ جمله عالم په تصورانو او خيالاتو کښے چه خومره بهتر ئے. او عزتونه او نعمتونه دولتونه دی ستا دعلم په مقدار دے لمحه لمحه کښے ستا په توفيق او هدايت قسمونه وی چه يوه لمحه او طرفه دَ رضا او لقا ستا ترے بنه ده ـ لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظلمين ۰ ماشاء الله لا قوة الا بالله العلی العظيم ط سبحان ربک رب العزة عما يصفون ۰ وسلام علی المرسلين ۰ والحمد لله رب العلمين ۰

---

دَ جمله عالم يقين باور اقرار
هزار ځل دَ چا په جمله ښه کردار

دَ ظاهر او دَ باطن په عبادت
دظاهر او دَ باطن په کرامت

يا دَ چا په سلطنت دکل عالم
په عزت حرمت صفت دکل عالم



دَ سخا کرم عطا او عدالت
مرحمت او شفقت او شجاعت

دَ هزار هزار هزار هزار کربونو
دَ کالونو په اوگدو او گدو عمرونو

دے جمله وړنه مولا رب العزته
په لوئے شمير دَ علم ستا رب العزته

يو لمحه ستا دَ رضا ښه ده خاونده
يو طرفه ستا دَ لقا ښه ده خاونده

ستا دَ علم په لوئے شمار هره لمحه
ستا دَ علم په مقدار هره طرفه

په هزار هزار تعظيم ادب حيا
عشق و شوق و محبت يا کبريا

دَ ازل نه تر ابد م دا اقرار
شه نصيب ستا دَ ډير لوئے علم په شمار

دَ ازل نه تر ابد م دا ايمان
دَ ازل نه تر ابد م دا احسان

دَ ازل نه تر ابد دا محبت
دَ ازل نه تر ابد دا شرافت

دَ ازل نه تر ابد م دا نثار
دَ ازل نه تر ابد م دا کردار

شه نصيب په شمير دَ علم ستا خاونده
شه نصيب په شمير دَ حکم ستا خاونده

ستا دَ جمله صفتونو په عزت
ستا دَ جمله خونومونو په عزت

په ښه نيت ښے عقيدے ايمانی ذوق
په ښه عشق و محبت او په ښه شوق

دَ جمع او عرفے اخيره شپه کښے
دَ محبوب محترم نزدے روضه کښے

او هم حجر اسود سره نزدے
ستا دَ پاک بيت هم يو حد سره نزدے

اے لايقه دَ جمله حمد و ثنا
دبنا يارب بنا يارب بنا

مَا شَاءَ الله لَا قُوَّةَ مَولَا
اِلَّا بِکَ اَنتَ رَبَّنَا الاَعلےٰ

تُؤتِي العِزَّةُ لِمَن تَشَاءُ اَنتَ
تَنزِعُ المُلکَ مِمَّن تَشَاءُ اَنتَ

جمله خير په لاس کښے ستا دے خپل مولا
احسان ستا بے انتها دے خيل مولا

تا له حمد و شکر ذکر په بار بار
ستا دَ لوئے بے انتها علم په شمار

دَ ازل نه تر ابد هره لمحه
په حيا ادب بے حد هره طرفه

په بې حده ذوق و شوق محبت
په تعظیم تکریم وقار عشق لذت

د ذره و د کائنات کبریائي
د ظاهر باطن په جمله گویائي

کما انت اهله و ترضیٰ به
و تحب ډېره خپله اعلیٰ ربه

هم په دے مقدار او جمله ادبونو
په حیا ادب او جمله تعظیمونو

په محمد مصطفیٰ دِ وي درود
په اشرف الانبیاء دِ وي درود

هم په آل و په اصحابو ئې د اشان
وسیله ئې کړے نصیب په خیر احسان

محمد امین عاجز فقیر لاچار
ستا د علم په لوئے شمار کړے دا اقرار

دا ویل او دا اېنکل او تصور
دا یقین او دا ایمان او تفکر

جمله ته ئې حقیقت کښې ربنا
هم پتا سپارلے ستا شکر و ثنا

سبحان ربک رب العزة عما یصفون ○ و سلام علی المرسلین ○ والحمد لله رب العٰلمین ○ اللهم صل و سلم و بارک علیٰ اشرف الانبیاء والمرسلین محمد و آله و اصحابه اجمعین ط واعطه الوسیلة و الفضیلة عدد علمک و زنة کبریائک یا ذا الجلال والاکرام ط برحمتک یا ارحم الراحمین ط

## روحي فداک محبوبه

د ډېر زیات خپل رب العزة جل جلاله په محض فضل او احسان ستا ازلي شیدا یم۔ تر یو دېدن به دِ دواړه جهانه زار او نثار او لوګے کړم۔ د جمله جهان عیش و عشرت به له خپلې یوے لحظې جدا چه ستا له شوقه کوم زار کړم۔ الحمد لله تعالیٰ علیٰ ذالک۔

ازل نه یم د محمد محبوب په ښکلي مخ شیدا!
دواړه جهانه به ئې تر یو دیدن زر وارے کړم فدا



چه ئې جبریل غُنده نامدار کوي په فخر نوکري
زه د هغه ښکلي دربار سره له عشقه یم گدا

هزار هزار هزار فردوسه د زلفانو په هر خم
لړی محبوب ځما والله لرم په زړه دغه سودا

هزار هزار عالمه کړم نثار ازل نه تر ابد
قسم په رب د خپل محبوب د عاشقۍ تر یو ادا

علوي سفلي نه په پنځوس زره کالونو نخوانے
ثنا د رب ده عاشقۍ د خپل محبوب له یم پیدا

په مسالو کښې به د عشق کړمه وریتے تیکے د زړه
که مِ مهمان شي ډېر بهتر ښکلے دلبر بهر خدا

د یو لمحے تر جریدو خپلو له عشقه د محبوب
والله قربان کړم د جمله جهان خاد عیش و خندا

دا محمد امین جریږي په حیا سوز او ادب
که عندلیب سحري په گل روي و کوي صدا

## رؤف الرحیم محبوبه

د ډېر خپل او ډېر کریم رب العزة جل جلاله په محض فضل و احسان او کرم۔ که د جمله عالم روحونه مِ په هر نفس شي۔ او د لسو لکو جنتونو مالک شم۔ قسم په رب العزة جل جلاله ستا د عشق د یوے ادا به ئې زار و نثار کړم۔ الحمد لله تعالیٰ علیٰ ذالک۔

زه د ازل نه یم شیدا د محمد مصطفیٰ
هزار هزار ځل یم فدا د محمد مصطفیٰ

د جبرائیل غندے نامدار په صد هزار فخرونو
سره له عشقه دے گدا د محمد ﷺ مصطفیٰ
چه صد هزار هزار فردوسه په هرخم کښې لرې
قسم په رب زلفان دی دا د محمد ﷺ مصطفیٰ
کرم په دربار به ئې لوگے هزار هزار عالمه
هسے لرم په زړه سودا د محمد ﷺ مصطفیٰ
هزار هزار فردوسه زار کرمه قسم دے په رب
د عاشقئ تریو ادا د محمد ﷺ مصطفیٰ
روز ازل نه په هزار شوق وتعظیم و ادب
یمه ولاړ په اقتدا د محمد ﷺ مصطفیٰ
د رب د علم په مقدار م دا اقرار و باور
بس عاشقئ له یم پیدا د محمد ﷺ مصطفیٰ
خوار محمد امین له صدقه په احسان د خپل رب
مثل بلبل دے په صدا د محمد ﷺ مصطفیٰ

## ډیر بهترین محبوبه

په صد هزار ادب حیا شوق و محبت په توفیق او هدایت د خپل رب العزة جل جلاله ستا مقتدی یم. که په هر نفس م دکل عالم روحونه شی. په رب العزة جل جلاله م د قسم وی. چه لتا نه ئې فدا کړم. ماشاء الله لاقوة الا بالله العلی العظیم ۰

ازل نه په سودا د محمد ﷺ رسول الله
والله یمه شیدا د محمد ﷺ رسول الله



په صد هزار ادب حیا او شوق او محبت
زه یم په اقتدا د محمد ﷺ رسول الله
روحونه د عالم که شی ځما په هر نفس
والله کړم به ئې فدا د محمد ﷺ رسول الله
هزار هزار فردوسه به والله کړم زار نثار
د عشق په یو ادا د محمد ﷺ رسول الله
هزار هزار فردوسه د زلفانو په هرخم
منم زه بخدا د محمد ﷺ رسول الله
واصل شولو په لامکان د پاک رب العزة
دے شان و شوکت دا د محمد ﷺ رسول الله
نصیب د محمد امین د کړی رب العزة
چه تل وی په صدا د محمد ﷺ رسول الله
صلی الله تعالی علیه وعلی آله و اصحابه
وسلم کثیرا کثیرا ۰

## ډیره ږوېډاره محبوبه

صد هزار عالمه د په در لوگے کړم. که دواړه جهانونه م هزار هزار وارے دفتر شی. او هزار هزار تاجونه د کونینو د عزتونو م په سر شی. ستا د پا ئزار گرد و غبار نه د نثار وی. ما ته ستا دی شل له عرشه پورته ده۰

ماشاء الله لا قوة الا بالله العلی
العظیم ۰

صدؔ[1] هزار عالما لوګے ستا په دربار کړمه
پاک محمدؐ مصطفیٰ له صدقه دا اقرار کړمه

دواړه جهانونه که هزار وار دے دفترم شی
صد هزار تاجونه د عزت جمله په سرم شی
ستا د پاک پا ئزار ګرد و غبار نه به ئے نثار کړمه
پاک محمدؐ مصطفیٰ له صدقه دا اقرار کړمه

که په هر نفس م شی روحونه د جمله عالم
ستا تر یو وینسته به ئے لوګے کړمه په خدائے قسم
خیل رب العزة ستا هسے شانِ وفادار کړمه
پاک محمدؐ مصطفیٰ له صدقه دا اقرار کړمه
ماته ستا د رِشل[2] له عرشه پورته کړه رب العزة

[1] دا نعت شریف. د دیم ز نور د ستر ګو د زړه سرم محمدؐ رسول الله د ے) د دیم ذکرو دنیا کون و مکان ستا مخ منور مرحبا) در ے واړه په یوه موقعه د سالانه مولود شریف د ربیع الاول د جمعے په درز د حاجی اباد په جمات کښے په عظیم الشان مجمع کښے د ممبر د پاسه جناب حاجی صاحبؒ مرحوم پخپله او حاجی محمد کریم صادب مرحوم نعت خوان د شبقدر دواړو په خپلو غبرګو اوازونو په ولاړه ډیر په بهترین ښکلے لهجه طرز او انداز کښے ویلی دی.[3] چه د هغ به څوک څهٔ صفت بیان کړی او څهٔ خوبی به او لیکی. ژبه د هغ د بیان نه او قلم د هغ د لیکلو نه عاجز دے. د غه منظر چه چا په خپلو سترګو لیدلے دے. یا ئے په خپلو غوږونو آوریدلی دی هغوئ ته پته د ه. سه شنیده کے بود مانند دیده. الله تعالیٰ دِ د دواړو خپل مغفرت او درجاتِ عالیه نصیب کړی. آمین. دِ مذکور نعت سره م دالږ وضاحت مناسب او ګنړه. ۲. رضوان الله عفی عنه.

[2] په ریاض الجنة کښے په طرف د درشل مبارک کد اعاجز د سترګو اشاره او کړه. او عرض ئے او کړو. چه ماته دا درشل الخ. الحمد لله تعالیٰ علیٰ ذالک کما هو اهله الخ ۳ مدح ۲ عفی عنه

[3] غالباً د ے ۳۶ یا ۳۷ کاله کیږی – ۹۰۰۸۰۹۲



ستا په مخ م شه نصیب ستا ډیر تعظیم تکریم عظمت
دا سوال ستا په مخ د رب د لوئے علم په شمار کړمه
پاک محمدؐ مصطفیٰ له صدقه دا اقرار کړمه

صد هزار فردوسه په هر خم ستا د زلفانو کښے
ما اول منلی دی جرګے د عاشقانو کښے
خیل رب العزة ستا هسے شانِ مینه دار کړمه
پاک محمدؐ مصطفیٰ له صدقه دا اقرار کړمه

زه چه له ازل نه ستا ګدا او ستا شیدا یمه
صدق و له ایمانه ستا په ښکلی مخ فدا یمه
صد هزار مجنونه به له خپله عشقه زار کړمه
پاک محمدؐ مصطفیٰ له صدقه دا اقرار کړمه

زه خوار محمدؐ امین چه ربؒ ستا نعت خوان کړمه
زار به ستا له مدحو د عالم کل بلبلان کړمه
کله به بدل په دواړو کونو خپل اشعار کړمه
پاک محمدؐ مصطفیٰ له صدقه دا اقرار کړمه

## ډیر ګرانه محبوبه

د نور الانوار مخ انوار دِ له عرشه ډیر پورته تلی دی. ۲ رب العزة جل جلالهٔ دِ ستا د عاشقانو وصال په شرافت د مخ مبارک ستا نصیب کړی. عاشقان به صد هزار فردوسه قسم چه ستا د دی تر خاورو لوګے کړی. ماشاء الله لاحول ولا قوة الا بالله العلی العظیم ۵

صد هزار عالمه دَ پا تُزار ترخاورو زارشه ستا
ستا په مخ نصیب دَ عاشقانو ستا دیدار شه ستا
ستا دَ عاشقانو ستا په مخ نصیب شه ستا جمال
ستا دَ عاشقانو ستا په مخ نصیب شه ستا وصال
ستا په مخ منظور ستا عاشقان په پاک دربار شه ستا
ستا په مخ نصیب دعاشقانو ستا دیدار شه ستا
دواړه جهانونه چه روښان ستا له رُخساره دی
عرش نه پورته ستا دَ مخ انوار نور الانواره دی
ستا دَ مخ په نور رحمونږ نصیب ښکلی رُخسار شه ستا
صد هزار عالمه دَ دربار ترخاورو زار شه ستا
صد هزار فردوسه ستا دَ درترخاورو زار کړمه
خورم قسم له صدق وله ایمانه دا اقرار کړمه
ستا په مخ نصیب زما محبوبه دا اقرار شه ستا
صد هزار عالمه دَ دربار ترخاورو زار شه ستا
ډیر خپله محبوبه که هرغو ډیر نالایق یمه
ستا په مخ قسم چه ستا په ښکلی مخ عاشق یمه
ستا په مخ واصل دا بینوا عاشق زار شه ستا
صد هزار عالمه دَ دربار ترخاورو زار شه ستا
که دَ کائنات ذرے ازل نه ترابد خاوند
کړی په هرنفس ځما روحونه خپل صمد خاوند
زار ستا دَ پا تُزار ترمعزّز گردوغبار شه ستا



صد هزار عالمه دَ دربار ترخاورو زار شه ستا
جمله کائنات چه کړه روښانه ستا له مخه رب
خلاص دِ عاشقان کړی له هجرانه ستا له مخه رب
ستا په مخ نصیب دَ عاشقانو ستا ایثار شه ستا
صد هزار عالمه دَ پا تُزار ترخاورو زارشه ستا
زه چه له ازله ستا په ښکلی مخ شیدا یمه
زه چه له ازله عاشقۍ ستا له پیدا یمه
ستا په مخ نصیب زما گلونه دگلزار شه ستا
صد هزار عالمه دَ پا تُزار ترخاورو زارشه ستا
دا دَ عاشقۍ ویل بیا بیا دَ محمدؐ امین
ستا په مخ منظور کړه خپل خاوند پاک رب العلمین
زیاته بیماری دَ عاشقۍ دَ دے بیمار شه ستا
صد هزار عالمه دَ پا تُزار ترخاورو زار شه ستا

## په الله ډیر گران محبوبه

هزار هزار عالمه والله ستا په درنثار کړم ۰ دائم له صدق و له ایمانه له شوق وله محبته عقیده او اقرار ودے ۰ ازل نه ترابده لمحه لمحه کښے په هرنفس په شمار دَ علم درب العزة جلّ جلاله وعمّ نواله۔

هزار هزار عالمه ستا په درنثار کړم والله
خپله محبوبه زه له صدقه دا اقرار کړم والله
دَ مدینے منورے پاک محمدؐ مصطفیٰ

دومره عزت حُرمت لرې پاک محمدؐ مصطفیٰ
که تر محشره به ئې هیچرې په شمار کړم واللہ
هزار هزار عالمه ستا په درنثار کړم واللہ

کړم په هر نفس روحونه شي دَ جمله عالم
دائم ایمان دائم اقرار دا عقیده په هر دم
ستا دَ پا تُزار کردو غبار نه به ئې زار کړم واللہ
خپله محبوبه زه له صدقه دا اقرار کړم واللہ

دَ صد هزار نعتونو ستا نه یو ستایلې نه شم
دومره پیما ګران ئې محبوبه چه ئې ویلې نه شم
خاوند کریم دومره شیدا ستا په رخسار کړم واللہ
هزار هزار عالمه ستا په درنثار کړم واللہ

بې حده ګران ئې په دربار دَ خپل مولا محبوبه
دَ مرسلانو دَ جرګې صدر العلیٰ محبوبه
زه دَ ازل نه مولا ستا عاشق زار کړم واللہ
هزار هزار عالمه ستا په درنثار کړم واللہ

دَ عرش نه پورته په هزار هزار کرته خاوند
ما نه درشل ستا دَ دربار کړله اوچته خاوند
احترام دومره دَ ګدا ستا دَ دربار کړم واللہ
هزار هزار عالمه ستا په درنثار کړم واللہ

ښکلې رُخسار چه په محشر ستا جلوه ګر شي پیما
هزاره هزار کرته به اختر شي پیما



دومره دیر قدر ستا دَ وصل په بار بار کړم واللہ
خپله محبوبه زه له صدقه دا اقرار کړم واللہ

زه محمدؐ امینؐ ستا قدر او عزت او حُرمت
سپارم خپل پاک رب العزة ته په هزار محبت
دا حق ویل دَ رب دَ لوئې علم په شمار کړم واللہ
هزار هزار عالمه ستا په درنثار کړم واللہ

## محمدؐ رسول اللہ پاکه جانانه

تیاره دَ عدم ستا په پاک مخ رڼا شوه - دَ زلفانو په هر خم کښې دَ جمله خوبانو جمالې لرې. دَ رب العزة جل جلاله وصال دې په لامکان دَ رب دَ علم په شمار مبارک شه. په اللہ جل جلالهٗ دیر زیات ګران ئې -

دیر زیبا ښکلې جانان م محمدؐ رسول اللہ دې
دَ اللہ په در دیر ګران م محمدؐ رسول اللہ دې
چه تیاره ئې دَ عدم - شوه رڼا په مخ قسم
دا محبوب دَ پاک سبحان م محمدؐ رسول اللہ دې
په هزار فخر عزت - په هزار شان و شوکت
رب ستایلې په قرآن م محمدؐ رسول اللہ دې
چه ئې مخ شمس الضحیٰ دې - چه ئې مخ بدر الدجیٰ دې
دغه دیر ښکلې روخان م محمدؐ رسول اللہ دې
چه هر خم کښې ئې دَ زلفانو - شته جمال دَ کل خوبانو
بهترین شاهِ خوبان م محمدؐ رسول اللہ دې

عرش نه دیر پورته ختلے۔ دَ الله دیدار له تلے
مشرف په لامکان م محمدؐ رسول الله دے

جنتونه هزاران۔ والله کړم ترے نه قربان
گران پهاپه هسے شان م محمدؐ رسول الله دے

محمد امین فقیر۔ کړی په فخر دا تقریر
په والله دین وایمان م محمدؐ رسول الله دے

---

بسم الله الرحمٰن الرحیم

# اکسیر اعظم دَ یاره دَ محبت دَ محبوب کریم

صلی الله علیه وسلم

دا دَرے[۳] بیتونه قصیده دَ محبت ده۔ په ایمانی صداقت او عملی احترام په شپه ورځ کښے دیار[۱۳] لس کرته په جهر متوسط که خوف دَریا او نقصان چاته نۀ وو۔ ورنه دا سے خفیه چه قاری پرے نه پوهیږی۔ دَ یاره دَ محبت دَ محبوب کریم صلی الله علیه وسلم اکسیر اعظم دی۔

هر مسلمان روړ ئے چه په مذکور احترام لولی له مصنف عفی عنه ځنے ورته اجازت دے۔ ماشاء الله لاحول ولا قوة الا بالله العلی العظیم

---

هزار هزار عالمه درستا کښے هران محبوبه
لوګے لوګے کړم شه نصیب م دا ایمان محبوبه

دَ کائنات جمله ذرے کړم روحونه کړی رب
په هر نفس قسم په رب تا نه قربان محبوبه



ازل نه تر ابد هر دم دَ رب دَ علم په شمار
په ډیر تعظیم دِ وی تکرار دا حق بیان محبوبه

---

بسم الله الرحمٰن الرحیم

(اکسیر اعظم دیاره دَ محبت دَ محبوب کریم صلی الله علیه وسلم)[له]

دا دَرے[۳] بیتونه قصیده دَ محبت ده + په ایمانی صداقت او عملی احترام په شپه ورځ کښے دیار[۱۳]لس کرته په جهر متوسط که خوف دریا او نقصان چاته نۀ وو۔ ورنه دا سے خفیه چه قاری پرے نه پوهیږی دیاره دَ محبت دَ محبوب کریم صلی الله علیه وسلم اکسیر اعظم دی + هر مسلمان روړ ئے چه په مذکور احترام لولی له مصنف عفی عنه ځنے ورته اجازت دے ماشاء الله لاحول ولا قوة الا بالله العلی العظیم

---

هزار هزار عالمه درستا کښے هران محبوبه +
لوګے لوګے کړم شه نصیب م دا ایمان محبوبه

دَ کائنات جمله ذرے کړم روحونه کړی رب +
په هر نفس قسم په رب تا نه قربان محبوبه

---

له (عرضِ کاتب) دا مذکور اکسیر اعظم دَ مصنف مرحوم رحمه الله دَ ځپل رسم الخط مبارک په عکس دَ اصلی قلمی نسخے ص۶۶ نه ثانیاً دَ خاص و او عامو دَ تسلی او اطمینان دَ پاره تبرکاً وړاندے کیږی ۱۲

زړل نزتر ابدیا بردم درسے د علم پۀ شمار یلا
بۀ دیر تعظیم دوی تکرار داتل بیان کړوبۀ

## ډیره خپله او ډیره پاکه محبوبه

والله ستا پۀ در مبارک هزار هزار عالمه پۀ توفیق او هدایت دَ ډیر خپل او ډیر پاک رب العزة جل جلاله نثار کړمه. که پۀ هر نفس م روحونه دَ جمله عالم شی. دا م ایمان او عقیدۀ چه ستا دَ پا ګزار ګردو غبار نه ئې نثار کړم. علیک وعلیٰ آلک افضل الصلاة والسلام عدد علم الله تعالیٰ کما هو اهله ویحب ویرضیٰ وهو ذوا الجلال والاکرام ط

## مناجات بدګاه قاضی الحاجات

## اخر کښې ځان دَ پاره او کل مسلمانا نو دپاره دَ بخښې ، مغفرت دُعا

خاص هم تا لره لوئی ده او عزّت،
خاص هم تا له خدائی او جلالت
که هزار هزار هزار هزار عالمه
هسته وے یا نیسته وے له هره دمه
نۀ به ستا خدائی بہ زیاتہ شی نۀ کمه
لوئے خاوندہ هسے لوئے لرے قدرت



که پۀ یو ذره هزار هزار محشره
اندرون کړے خپله الله اکبره
اسان تا ته دَ یوه ویختهٔ له سره
دَ خپل عِلم پۀ تکرار پۀ هر ساعت
زما هسے لوئے خاوندا توا ننا
تاله خائی هغه شکر او ثنا
چه ئې ته پخپله وائے ربّنا
پۀ هزار صدق واخلاص او محبت
ستا دَ علم پۀ مقدار هره لمحه
ستا د علم پۀ تکرار هره لمحه
کوم سوال ستا پۀ دربار هره لمحه
پۀ هزار نیاز ادب او خجالت
دَ رضا او دَ لقا ستا خپل خاوندا
بِاَسْمَآئِکَ اَلْحُسْنیٰ ستا خپل خاوندا
پۀ پاک محمد دَ مصطفیٰ ستا خپل خاوندا
یا الله کړے دغه سوال مو اجابت
دَ جمله عالم جمله نیکئ طاعت
که پۀ هر نَفَسْ ځما شی ذرې کرت
بے له فضله ستا به یم پرے ملامت
ستا پۀ فضل م نصیب شه ستا قُربت
که دَ کل عالم ګناه ځما دفتر شی

حال مې هسې بد ناکاره او بد ترشی
که ستا فضل مې مل الله اکبر شی
بس لایق به یم دَ ډیر ښکلی جنّت
یو ذرې دَ عنایت ستا نه خاوندا
یو ذرې دَ مرحمت ستا نه خاوندا
یو ذرې دَ سخاوت ستا نه خاوندا
هزار ځل کم دې د کل عالم طاعت
ستا دَ علم په مقدار تا له حمدونه
ستا دَ علم په تکرار تا له شکرونه
ستا دَ علم په لوئې شمار تا ته عُذرونه
په حرمت او وسیلې د پاک حضرت
ستا دَ علم په لوئې شمار په هر نَفَس
ستا دَ علم په لوئې شمار لکه جرس
ستا دَ علم په لوئې شمار لکه ققنس
په هزار ادب نیاز ناز ار ذلت
اے غنی او بے پروا مولا صمده
ډیر پاک ربنا الاعلیٰ مولا صمده
توانا او کبریا مولا صمده
لوئې بے حده ستا دریاب دَ مغفرت
مونږ ه او بخې هر څو که ګنهګار یو
مونږ ه او بخې هر څو که شرمسار یو



مونږه او بخې هر څو که بد کردار یو
دَ محبوب حبیب زیبا په شرافت
په حساب را سره مه شې خپله ربه
په خپل فضل مو امان کړې له غضبه
مونږه او ساتې له هر کار بے ادبه
دَ محبوب پاک مصطفیٰ په شفاعت
**مُحمّد امینؒ** سرخیل دَ عاجزانو
او بخې سره دَ کل مسلمانانو
په ابرو او په عزت دَ کل پیرانو
دا مو سوال تل ستا دَ علم په کرت

---

## مُناجات بدرګاه قاضی الحاجات

له الملک وله الحمد وهو علیٰ کل شیٍٔ قدیره

خپل خاوند سبحان مو په ایمان رونړ و خوشحاله کړه
خپل رحیم رحمان مو په ایمان رونړ و خوشحاله کړه
خپل رب دَ خپل ذات مقدس په شرافت عزت
خپل رب د خپل ذات مقدس په لوئې عظمت حُرمت
په خپل اعلیٰ شان مو په ایمان رونړ و خوشحاله کړه
خپل خاوند سبحان مو په ایمان رونړ و خوشحاله کړه
خپل رب دَ خپل ذاتِ مقدس په لوئې تعظیم رونړو
خپل رب دَ خپل ذات مقدس په لوئې تکریم رونړو

کل مسلمانان مو په ایمان رو نړو خوشحاله کړه

خپل خاوند سبحانؒ مو په ایمان رونړو خوشحاله کړه

خپل رب دَ خپل ذاتِ مقدسؔ په لوئے احسان رونړو

خپل رب دَ خپل ذاتِ مقدس په لوئے فیضان رونړو

هر دم هر زمان مو په ایمان رونړو خوشحاله کړه

خپل خاوند سبحان مو په ایمان رونړو خوشحاله کړه

---

الحمد لله تعالیٰ کما هو اهله و یحب و یرضیٰ ۔ چه نن په ۱۴ ر ربیع الثانی ۱۳۷۶ھ په ریاض الجنة کښے متصل روضے مبارکے پورے عرض کول دَ دے کتاب "مِنْ الرَّبِّ الرَّحِیْم" په حضور دَ محبوب انور صلے الله علیه وسلم کښے ختم شو۔ ما شاء الله لاحول ولا قوة الا بالله العلی العظیم ۀ

محمد امین عفی عنه بقلم خود
ریاض الجنة مدینه منوره



الحمد لله تعالیٰ

چه نن په ورز دَ اتوار قریب رکنِ یمانی ته په سوری دَ بیت الله شریف چه کتاب دَ بیت الله شریف په دیوال مبارک ایخی دے۔ یعنی متصل بیت الله شریف پورے ختم شو۔

۵ ر محرم ۱۳۷۶ھ

محمد امین عفی عنه

اوس لګ ساعت قبل دَ دے کتاب سره داخلی دَ بیت الله شریف هم اُو شوه۔ ما شاء الله لاحول ولا قوة الا بالله العلی العظیم ط

محمد امین عفی عنه بقلم خود

---

# تَمَّتْ بِالْخَیْرِ

:- دَ کتاب ختمید ونه پس یو منظومه دُعا. دکتاب سبحان ربي الاعلیٰ نه [صفحه ۴۹]

بسم الله الرحمٰن الرحیم

[۱] په عبادت عادت جمله مسلمانان کړے ربه
مشکل سفر دَ آخرت مونږ ته آسان کړے ربه

یا بے زواله مونږ زوال نه دَ ایمان اوساتے
نفس و شیطان نه مونږ امان په خپل احسان کړے زه به

اُور دَ دوزخ باندے مومکړے شرمنده او رسوا
ځائے مو جنت کړے همراهان مو ستا دوستان کړے زه به

دارالبقا کښے مو رضا او لقا ستا کړے نصیب
سوال مو قبول په محمد آخر زمان کړے ربه

دَ خپل احسان او مرحمت او شفقت په اوبو
سیراب سرسبز دَ اسلام دا گلستان کړے ربه

فتح و نصرت شان و شوکت عزت قوّت برکت
نصیب دَ جملګی اسلام په کل جهان کړے ربه

---

[۱] (لږ وضاحت) دا منظومه دُعا به حاجی صاحب مرحوم رحمة الله علیه اکثر دَ مانځه نه پس دَ دعا په آخر کښے په عامه مجمع دخلقو کښے، یا تقریر کولو نه پس، یا دَ مولود شریف په آخر کښے په خپل زړه راخکونکی طرز او ښکلی مؤثر انداز کښے لوستله. چه په سړی به رِقّت او عجیب حالت طاری شو. او عامو خلقو به په ډیر شوق سره آمین ویلو.

او کله به ئے دا بله دعا او لوستله. چه :- یا الله دا پاک اسلام دَ محمد) تر آخره. چه دا "دیوان محمد امین" او "دیوان مداح" کښے هم ده. او گلزار مدینه آخری درے حصے چه نوے چاپ شویدی. په هغے کښے هم شته په زیادت سره شته. من اراد فلیراجع الیٰ هذا المذکور رضوان الله علیه



حکومتونه دَ اسلام تمام نظام کړے دَ دین
پر او معمور ئے په همه ساز و سامان کړے ربه

کل سیاست عزت ئے کړے په شریعت کښے نصیب
له جمله بدو بد عتونو ئے رو گردان کړے ربه

[۲] افغانستان دَ استقلال په شان زیبا لرے تل
په لوئے احسان آزاد سرحد او هندوستان کړے ربه

آبرو دَ دواړو کونو سره دَ کل دوستانو نصیب
دَ محترم غازی غیور [۱] بادشاه گل جان کړے ربه

[۳] بے فرزندانو لره ورکړے نیک عمل فرزندان
طالبان کړے عالمان خلاص قرضداران کړے ربه

بندیان آزاد رنځوران جوړ کړے نیک عمل دَ پاره
نازل په قدر دَ حاجت دَ خیر باران کړے ربه

په اتفاق او اتحاد مسلمانان کړے همه
داخل په خیر په خپل وطن مسافران کړے ربه

پوهے دَ مانځه په کل احکامو تر قوے او جلسے
اول زمونږ امامان بیا مقتدیان کړے ربه

مُسلمانان دکل جهان سره دَ محمد امین
دَ محمد رسول الله په دین قربان کړے ربه،

---

[۱] دا د جناب محترم ترنګزو باباجی صاحب مرحوم مشرزوی دے مشهور په بادشاه گل صاحب خپل نوم ئے جناب فضل اکبر صاحب دے وفات دے افغانستان کښے کابل نه څه فاصله مخکښے "گوه دامان" کښے ئے مزار اقدس دے

اختتام کتابت ۹۲/۸/۹